

# د اباسین څپې

مرتبه:- همیش خلیل

قیمت:- ۲ روپے - ۸ آنے

دوه نیمې روپۍ



# د اباسين څپې



مرتبه

هميش خليل

(۱۰۰۰)
تعداد: ——————— يو زر



# فهرست

کاتب عبدالقاسم



# مېشګون

زمانې تېرې شوې - چه اباسين بهيږي. پرون هم بهيده او نن هم بهيږي - ولې د پرون غوندې نه ــ نن د اباسين په رفتار کښې، د هغه په چپو کښې د هغه په شور او زوږ کښې او روانۍ کښې د ډېرو سترګو وينو او يو ستلو نه پس چه د کوم نوې شکل ارادې څرګندېږي هغه نن هر احساس محسوسولې شي . او نن د اباسين اوبو روان کاروان سره د اباسين د چپو کوم نوې جرس چه غږېږي هغه ټولې پښتنو له د بيدارۍ پيغام دې .

اباسين د مونږ شه رګ دې . چه د ننګ او پښتو او به پکښې د پښتنګيالي د ګوډې وينې هسې خپل کار کوي . او نن هم دغه شه رګ د مونږ د نوي ژوند او زيست په هغه آرزوګانو بيقراره دې . کوم چه د لوئې خدائے تعالیٰ له د دې مونږ پيرزوينه ده - زه پوهېږم چه مونږ بيداره ولو د پاره اُس د اباسين چپې د هر پښتون ترکوره





حجرې ئځاته، غزا و ... سید لو کوشش کوی. پښتنو ته د یروانی

او ورور ولی د پیغام سره د راتلونکی وخت د تیاری او نوی ژوند

زیرے هم ورکوی.

اباسین روان دے او روان به وی. تن یې د خپلو پورته

چپو په ژبه د ماضی داستانونه راسپړدی دی. د اباسین هره

چپه زمونږ د تاریخ یو ځانله پاڼه ده چه د لهرونو په تحریرکښ راته

د جنګونو، د معرکو، د آزادی د کشمکش او خپلواکی د پاره د نجد و

جهد پیغامونه راکوی.

لکه څنګه چه اباسین د سیند و نو پلار او لرغونے سین دے.

همدغه شان پښتون هم د قومونو پلار او لرغونے قوم دے. او

د دغه لرغو نتوب سره هغه یو جنګیالے او توریالے قوم هم پیدا شوی.

تاریخ ګواه دے چه دغه قوم همیشه د خپلے تورے په زور د خپل ملک

حفاظت کړیدے. او د خپل وطن د حفاظت د پاره همیشه د غیرو

قومونو سره جنګیدلے دے. د خپل ناموس او غیرت د سرکولو د پاره

یې د سر بازی ګوټے دی. ولے څنګه چه د زمانے دود دے او یا





لکه چه تیرو زمانه مونږ ته ښائی چه د زمانې د هر ضرورت په وخت کښې د غه قوم کښې یو داسې فرد پیدا کړیدے چه د پښتون د اتحاد یو والی او د غه قوم د پاره د یو بیل مملکت آرزو ګانې یې د ځان سره ساتلی دی او خپل د غه مشن سر ته رسولو د پاره همیشه استبدادی قوتونو سره یې ټکر اخیستی دے ـ که مونږ د خپلې ویرې خاورې په تاریخ د تیرو زمانو د تلو قافلو د بنا پو لټون ، وکړو نو هیڅ رنګه نشی کیدے چه د نظر خاوندان د د میرویس نیکه د ښکرو د پښو ښانې او نه وینی . د شیرشاه سوری آرزو ګانو نه دِ وا ، تغافل نشی ـ د اسلامی وسیع او مستحکم سلطنت قایمولو د پاره ابدالی بابا غوندې ستر غازی د کوششونو منته او نکړی . او د خوشحال خان خټک د ملی وحدت ارمانونه دِ یو دار بیا مونږ د هغه په قدم قدم ایښودلو د پاره مجبور نکړی .

سره د دے چه مختلفو دورونو کښې هم د یو مقصد ، دیر مشن د پاره د یو پښتانه د اهمایان په دغه مقدسه خاوره نیکیدلی دی ـ دلے دا د ډیر مقام دے چه د کوزے پښتونخوا



دَ پښتنو من حيث القوم په يو آور کښې په اتفاق او رورولۍ ساتلو
دَ استوګنې امکانو نه تر اوسه ... رته او نه رسېدلی شوي دغه
شان رهبران لکه زمونږ قوم کښې چه وخت په وخت دَ يو والي
بيرغ پلاس راپورته شوي دي. په بل قوم کښې پيدا شوي
وې نو زه دعوې سره وَ ويلې شم چه نن نه ډير وُړاندې
به هغه قوم په حقيقي معنو دَ ژوند په خوږ و موړ او ښاد
ښاد وې.

زه دلته په دې بحث کول نه غواړم. چه زمونږ دَ دغه
ناکامو اسباب څه دي؟ څوکه يو نفاق او خود غرضي زمونږ نه
اوځي. نو نور که هر څومره وجوهات زمونږ دَ دغه ناکامو دپاره
څه لږ ډير ممکنه کيدې شي. نو هغه هيڅرې زمونږ دَ ملي وحدت
په لار کښې نشي ردړه کيدې.

ډيرو قومونو مونږ دَ خپلو بې اتفاقو او خودغرضو په وجه
ډيره موده لکه دَ بزو او څرولو. په مونږ يې حکومتونه اوکړل.
او تقريباً هر قوم که هغه مسلمان وُو يا غير مسلمان دَ سيادت په





د غه نقطه متفق نه کاړي . چه په صرف يت او هيڅ صورت نه ده .
قوم يو نشي . بلکه د خپلو ستبادو ، قوتونو بحال ساتلو د پاره يې
بخرے بخرے کړه . خيل يې د خيل نه او ورونه يې د ورور نه
نه صرف جدا کړل . بلکه پخپلو عيارو او چالاکو يې د دغه بخرو
خيلونو او رونو ترمينځه د دښمنو ، تربګنو او نفاق تخمونه هم
اوکرل . که چرے نن مونږ خپلو کښې جرګه شو او د دغه غلمانو
په نقطه فکر اوکړو . په کومه چه دا ټول متفق اديو را ـــ يې
بنکاري . نو زما په خيال يو بالغ په هم له د يمنه انکار اونکړے
شي . چه د دے محض او محض هم دغه يو وجه کيدے شي - چه
د دُنيا په قومونو کښې صرف او صرف پښتون يو داسے قوم دے .
چه که چرے دا قوم يو شي ، دُښمني ، تربُور ولي او تربګني
ترے اوځي . د يو آزاد قوم په خيريے پالنه اوشي . د خپلواکه
قومونو غوندے تعليم او تربيت ورکړے شي . نو هم دغه
پښتون قوم د هغه ټولو مسلاحيتونو او قوتونو فطرتاً مالک
دے . چه په دُنيا د بهترين او پُر امنه حکومت قائمولو او بنه

طریقه چلولو اهل دے۔

دَ قرائینو څرګندیږی چه پښتون دَ ازله دَحکومت کولو دَپاره زیږیدلے دے۔ دَ پښتون په تهذیب، تمدن، تُور، ژبه، لباس، کرد وړ و، او ادب کښ دَ آزادئ او حکومتی دبدبے نښے نښانے څرګندے لیدلے شی۔ او همدغه وجه ده۔ چه کله ئې مونږ دَ پښتو ادب هنداره چیل څخه او نیسو۔ نو دَ غلا مئ غږوند شلولو دَ پاره چه پښتنو لیکوالو او شاعرانو دَ خپلو قلمونو او جذبا تو کوم زور ښودلے دے، نو رقومونه ئې په تُوره او توپک هم نشی ښودلے۔ دَ کوزے پښتونخوا دَ شلمه صدئ عیسوی دَ هغه تولو قامی شعراؤ دَ قلمونو قوت دَ "اباسین چپے" کښ راغونډ او کوشش شوید ے۔ کوم چه دَ استبدادی حکومت خلاف دَ وطن آزادولو دَ پاره شپه او ورځ استعمال شوے دے۔

" دَ اباسین چپے" دَ ځنو پښتنو شعراؤ دَ کلام مجموعه ده ــ چه دَ قومیت او آزادئ ګټه جذبے پکښ نقطه عروج ته رسیدلے

دی۔ او د ابتدائی چه پښتانه شاعران په میړنی جهاد د نن میدانِ جنګ
دَ جنګیالو دَ حوصلو او جنګی قوتونو زیاتوونکی، دَ خوږ مره لوئے
تجربے خاوندان دی۔ او نه صرف دا خبره هم دومره ده
بلکه هم په دغه شعرا دَ ښو عملی طور ډیر شاعران او لیکوال
دَ خپل هدف او مرام حاصلولو دَ پاره دَ غلیم خلاف او که
په توره جنګیدلی دی۔ او ځنے داسے شعرا پکښے هم شته چه د
آزادئ په لار کښے ئے د شهادت جامونه ترغوړے کړیدی۔

نو ځکه زه وایم چه دَ پښتون قوم دَ اوېره بجنی بوا و بیداد
احساس دَ بقاءَ دَ پاره مونږ ته هم دغه شان ژوندی او هغه
ادب ضرورت دے۔ چه دَ مقصد لمن پر یه نږدی او په صحی
معنو کښے دَ ژوند په لار دَ پښتون قوم دَ روانے قافلے دَ پاره
دَ جرس کار ورکړی۔ خدائے تعالیٰ دِ وکړی چه دغه غفلت وهلی پښتون
دَ تورے شپے دَ پاره یو مشال شی۔ چه مونږ دَ یو نوی ژوند دَ نوی
سحر سره آشنا کړی۔

همیش خلیل
غریب آباد ۳۱ اگست ۱۹۵۷ء



# دَ اباسین سندره

سمندر خان سمندر

یم زه اباسین بڅ دَ نمر هسې زه پېدار لـرم
واوره زما مور ده وطن پورته په کهسار لرم
مور مې ده پکړی دَ هماله هسې هر غر دَ سر
مخ ته دَ دُنیا دے وه ژوندون مې دَ بابا نظر
څاڅکی زما هر کله دُر د ردی دَ دُرخو دَ غوږ
تُند ے چې تګ مې په مخ، کاندی آدم خان ته غږ
دلته غلی هلته غلی بس همه ژوندون یمه
زه خپله پښتون یمه چه برید زه دَ پښتون یمه
دا زړه دُنیا زه یے دَ سپین سر یو تار یمه

اُس په خزلے زه دَ پښتون لکه بناما ریمه





تولو ته خوپلار وُ سمندر، مئی دُنیا او وے
یے څه خبر، ماته اباسین ولے هرچا او وے؟
خوب اُوری پښتون ته پونه شپه ورځے دِ ویښ لرا
بل زه خزانے دَ مُودو را سے دَ ستاریخ لـرم
ځومره څه بے مثله خزانے وَ زما غاړے دی
ځومره کیسے ستانه په دے خانه اول زاړدی
دِ میرے سیملی راغلے څوا هم دَ سکندر څسے
لاړے بُهیدم زه، بهیدم دَ سمندر څسے
پیژنے خنجر؟ نه ته خویئے نوم سَاشنائے لبس
رب دِ خبر مکړه، دَ توریالو تورے ستائے بس
کوره! له زرها تورو پیدا دے زما تن توره
ماسره سنباله دَ هریوا اتل زرن توره
غاړے زما دواړه دی، تیرے زه دَ مقصود توره

هریوه پښتون سره بمبل زه دَ محمود توره





اوره چه لنډے م چپے والئ، دَځو کالو دی ؛
دا کورے غلچیانو دَغوریانو دَا بدالو دی ؛
دلته زما خواته سید احمد دَبریلی اوده
دا سے پښتګان دی بلا ډیر په خوشحالی اوده
ما سره خوسرے و بیئے سنبالے دَغازیانو دی
دا دَ فرشتو دَحنا سیالے ' دَ غازیانو دی
کوری په هنداره کښ خیبرم، له بربامه تل ،
عکس یے په پکړی، په وینو پریوځی له ماښامه تل
اُس خوم بیړی ته دَمُسلم سینه هواره ده
شابشے ما نکالو چه وخت زغی صفا لاره ده
اُس خو کتل هم ده ګناه لویه دَساحل په لور
شابشے او شابشے او شابه دَمنزل په لور





# اے زما وطنه

غنیٓ

اے زما وطنه دَلعلونو خزانے زما
ستا هره دره کښې دی دَتورو ښنائی زما

زه یم ستا دَخاؤرو نه زما دَ مینې جوړه یے
ته م دَغیرت او دَ پښتو رنګینې جوړه یے
ته م دَنیکه او دَ بابا دَ وینې جوړه یے
ستا زره کښې او ده دی تو لے تیلے زمانے زما
اے زما وطنه دَ لعلونو خزانے زما

سترګے م لوګے شه ستا دَخاؤرو دَګورونو نه
عقل م ایرے شه ستا دَ پاره دَ فکرونو نه
ځار شمه قربان شم ستا دَ غرونو سیندونو نه
ستا هره دره کښې دی دَتورو ښنائے زما
اے زما وطنه دَ لعلونو خزانے زما





ستا عزت چه نه وی زه به نوم او عزت څه کړمه؟
ته چه خوار و زار یې زه به خوب و راحت څه کړمه؟
ستا سر چه وی ټیټ نو زه به شان و شوکت څه کړمه؟

مسته به دِ خاوره کړم په وینې ستا زما
اے زما وطنه دَ لعلونو خزانې زما

یا به دَ سیالۍ دِ کړم وطنه بلا جهان
یا به ستا په پښتونکښ تورے خاورے کړم ځان
زه به درے ورے شم خو تا به کړم ودان

نریمه پښتون یم تا ته یاد ے افسانې زما
اے زما وطنه دَ لعلونو خزانې زما

ستا هره دره کښې دی دَ تورو لښانې زما





# غلامي او آزادي!

میتوش

وسله څه دَ غلامانو له زیور دے
دَ آزادو خلقو مېتو کښې جوهر دے

غلامي یو بے کسي دَه بے وسي ده
آزادي هره لحظه کښې چوکسي ده

که غلام شي آسوده خولوے خسیس وي
دَ آزاد خوي گدای کښې دَ رئیس وي

غلامي له مرګه کټ کښې پټمیدل دي
آزادي اجل سره کشتي کول دي

غلامي مکر و فریب دهوکه بازي ده
آزادي دَ هر حرصه بے نیازي ده

غلامي دَ ویرے خدے ویل لمروده
آزادي دَ خدے بنده ویل داؤدته





غلامي دَ زړه تنګي بد نظري ده
آزادي دريادِلي نيک نظري ده

دَ غلام کرګس خالي جوسه دَ بُت ده
آزاد روغه نمونه دَ لا يموت ده

دَ غلام دے وخت بے حده لړيځ کار دے
دَ آزاد و وخت ګم کاريځ بسيار دے

غلامي خود نمائي خود ستائي ده
آزادي جهان باني ده بينائي ده

غلامي دَ کاهلۍ بهانه سازي ده
آزادي حُکم منل او سر بازي ده

دَ غلام ډيرے خبرے کم کار وته
آزادي په چپه خوله نړؤل غرونه

دَ غلام زړه په ساحل خوشے خذف دے
دَ آزاد زړه دے ګوهر سينه صدف دے





په ضمیر کښې دَ غلام حسد اَخلې
دَ آزاد زړه دے له مینے نه پوُ کلے

دَ غلام ادب شهکار دَ خوشامند و
دَ آزاد زړه دے وینا ر دَ خوشامند و

غلامی زړ په ناموس باندے کټل دی
آزادی سر په ناموس باندے خندل دی

دَ غلام روزی رسان فقط آقا دے
دَ آزاد روزی رسان فقط الله دے

غلامی ده بُت گری بُت پرستی ده
آزادی دَ ژندگۍ حقه مستی ده

غلامی دَ نافرمانو جهنم دے
آزادی دَ فرمانبرو باغ ارم دے

دَ غلام زړه کښې سودا تل دَ خانی وی
دَ آزاد زړه کښې جذبه تل دَ ځوانی وی





غلامان همیش په ناسته خوشحالیږي
لکه اوسپنه آزاد په کار کلیږي

دَ غلام دَ زړه ښادي وي عشرتونه
دَ آزادو خوشحالي منډې داوُنه

غلامي یو رسوائي دَ سرپیتوب دَه
آزادي یو زیبائي دَ سرپیتوب دَه

دِ لے تل په غلامۍ باندے خوریږي
همیشه په آزادۍ دِ لے جوړیږي

آزادي چه دَ مذهب او دَ ټبگي شوه
قطعي دَ هغه قوم دوبه بیړۍ شوه

آزادي په صداقت باندے بخیږي
په ټلگي دَ سرې هسے پښه خوږیږي

که ښیباک عقل پښتان لره رهبر کړو
عمارت دَ آزادۍ پخاکستر کړو





که سالم عقل دِ ځان له راهنما کړو
په جهان کښې دِ جهان نوے بنا کړو

هم دَ داسے دِ لو مَل پرور دِ کاروی
دَ خدائ په رښتیا سره واکدار وی

دا د حشر که غلام او کوری ځان نه
دَ عمل توښه دِ وړاندے کړه میدان ته

بے عمله څه مونده په دُنیا نیشته
معنی بله اِلاّ ماسعیٰ نیشته

---





# پوه نغره

حمزه شنواری

قامولې لکه لیلیٰ ته یې مجنون شه
دَخپل قام نه شه قربان هغه مجنون شه
ته تر ډیره لکه بزے او خرید لے
راشه اُس خو دِ ځان او پیژنه شپون شه
په معنیٰ کښ به محیط لکه فلک شے
دَخپل ځان په معرفت سرپه زنګون شه
که په خیل وبله بیل یې موند دِ یو دے
ډیرے پریږده یو ے لارے ته راستون شه
کوتے ږده دَ وخت په نبض دَ قام شاعره!
په تیجنه زمانه کښ افلاطون شه
نوی پښت وته دِ "نن" "ځلند" "صبا" کړه
کویا تک دِ نه وُ، تک هغه پروت شه





دَ مِلّت رګونه پلې دی مرغيچن دی
دَ غيرت له جوشه وينه دَ ژوندون شه
نه په باغ کښې دَ سيالۍ به لګه ګُل شے
خو کلۍ غوندے اشنا دَ زړه چاؤدون شه
نه آزاد يې دَ آزادو په خيرا وسه
ويريدليا! اُس دَ غاړه را بيرون شه
دَ حمزه کلامه اُس درنه حاجت دے
په غافل قام کښې تاثير او کړه افسون شه

# اِتفاق

شیر علی خان دَ خویشګو

دَ اتفاق په سوب خلق پاس په آسمان الوزی
له ویجاړ باغه همیشه تول بُلبلان الوزی
دَ اتحاد په زور ولی به څپل وطن اوکړے
که زور دِ زور کړو هله نه به څپل چمن اوکړے
هم به وطن تول دَ افغان هندا وختن اوکړے
پریږده نِفاق باغ دَ نفاق کښې تل خزان الوزی
دَ اتفاق ماده کړه ځان کښې راپیدا پښتونه
او سیدل کله شی کیدے تل په بیلیا پښتونه
شو په نفاق سره هر قوم لتا جُدا پښتونه
له تالا باغه په هر ځائے بنایسته مارغان الوزی





ته یې پښتون دَ پښتنو دغه وطن کړه آباد
دے پښتنوله په هرځائے کښې انجمن کړه آباد
واړه دیهات دَ پښتنو لکه لندن کړه آباد
دَاتحاد غنچې پسې تل بُورا گان الوزی

دَ اتفاق شمع کړه بله دَ اتحاد په روغن
کړه پرے راجمع پتنگان او عاشقان دَ وطن
په اتحاد به ته او باسے زر بُنیاد دَ دشمن
په بله شمع پسے هر ځائے پتنگان الوزی

شهد پیدا له اتفاقه دَ مگس وینمه
دَ بے تفاقه باز په جاله کښې تپُس وینمه
دَ اتحاد په تُوره هریو دښمن غوس وینمه
دَ اتفاق خوشبوی پورته تر آسمان الوزی

چه اتفاق او اتحاد دَ مسلمان وُ کله
وُ قانن ترقان یې حکومت چه دَ پاسبانې وُ کله
دوی حاکمان وُ هسے نه چه غلامان وُ کله



نن دَ نفاق په وجه دوی پسے ځان الوزی

دے اتفاق دَ جرمنی هټلر تباه کړلو زر

تمام وطن یې دَ جنګونو نه صفا کړلو زر

تورے تیارے نه اتفاق وطن رڼا کړلو زر

چه په ګلشن راشی طوطیان بیا ترے زاغان الوزی

پښتونو خپل ځان منظم کړه اتفاق پیدا کړه

خپل مار خوړلی له دَ خپل وطن تریاق پیدا کړه

دَ رور له قتل نه پښتونه اُس نفاق پیدا کړه

نفاق مرض سره دَ عود هسے ایمان الوزی

دَ اتفاق سبق کړه یاد چه درنه هیر نشی

دَ اتحاد ورق لتا نه تیرو بیر نشی

چه په ګردن دِ دَ دښمن تیره شمشیر نشی

تازه چمن کښ شیرعلی تل اورکیان الوزی

---





# اے وطنه ستايم

عبدالخالق تارن ـ بلوچستان

منے که نه په خدائے م قسم سنايم
رتلے ډير نتلے په غم ستايم
پيرس دے که کشمير په نړی وی دِ
مامور په لويو غرو او په سم ستايم
کم زره که م بدن ياکه دماغ دے
مالک يم که مملوک خو هردم ستايم
دولت به مومندم ډيرکه بے وفا شم
خو ستا دَ پاره تُوره وهم ستايم

نيولے که په تور يم ستا دَ مينے
شکر ونه چه عاشق يم صنم ستايم

مجنون یم دَلیلیٰ دَ وطن خپله
ژړوندے یم اوکه مړ په ستم ستا یم
تارن به ژړنګ دغه نسبت پریکړی
لیک شوے خوپه لوح وقلم ستا یم

---





# دَ وطن خاوره

راحت

ما ته خله بیا بیا ستائے
جارې بُوټي دَ وطن!

دا سپیره سُورا ړا غرونه
واړه کلی دَ وطن

دا دَ هاړ گرم بادونه
ساړه ژمی دَ وطن

خوار خیچنه جامے خیرے
گرد لړلے دَ وطن

ولے دا زما وطن دے
دَ نیکه آبا وطن دے

څه کشش دِ دے نامه کښ
دَ نامے نه دِ قربان شم





من وتن مې قرار نکړی
تا نه بیل شم په ارمان شم

ستا سپرلی له اِرم ښکلی
زه پتا باندے باران شم

ته زما دَعزت ځائے یې
ستا دَ قدره زه قربان شم

ته زما ښکلے وطن یې
ته زما دَ قام مسکن یې

بیل دَ سیله عندلیب دے
دَ سپرلی په انتظار یم

همنوا مې مُوندے نشی
دَ خپل سَوزه ناقرار یم

داغ په زړه مې ستا دَ مینے
ستا گیلے په اوږو بار یم



ستا په مینه مِ قسم دے
ستا دَ وَړاندے شرمساریم

یا فریادمِ بے اثر دے
یا ستا مینه کښِ خطر دے

هغه ورځ به کله راشی
ستا کیږلے وَرکے لماشی

ستا لما مینه پیدا شی
زما تلے قدر بیا شی

ته دَ سیالو سرهٔ سیال شے
زما هم فرض ادا شی

دا فریادمِ با اثر شی
هم صفیرمِ همنوا شی

ستا عزت زما عزت دے
ستا راحت زما راحت دے





# وطن!

محقق

وطن، وطن، وطن یا خوږ وطن زما

پماله هرڅه ګران

پتا کښ دے آرام دَ روح دَ سر دَ تن زما

لتا نه زه قربان

چه څوک په بندیو کښ دَ بل چا لتوی زر

اونا قلاره وی

یاکیږدی ورته لاس په تندی باندے پاس په سر

او بے آرامه وی

دَ داسے اوږ و سترګو خلقو حال وی تل بتر

او خوار زار وی

دَ داسے ژوندہ بنه دے خدیګو زنګدن زما

دَ قام په ننګ روان





وطن، وطن، وطن یا خوږ وطن زما
پماله هر څه گران
شری دَ دا سې کس دَ شاله بنه ده دَ بل چا
چه نه لری غیرت
شوده دَ ده دَ بزو، دَ ده په لورے هر صبا
اوبه یې د ی شربت
جونګړه دَ ده غوره له ماڼۍ ده دَ بل چا
او فقر یې دولت
نه تاجه دَ بل چا بنه دے پټکے خیرن زما
دَ قام په غم روان
وطن، وطن، وطن یا خوږ وطن زما
پماله هر څه گران
پتاکښې دے آرام د روح دَ تن دَ سر زما
پتاکښې دے آرام
وطن، وطن، وطن یا خوږ وطن زما
پماله هر څه گران





# وطن والیٔ

حضرت بادشاه گل صاحب فضل اکبر بیسوئم

زه خو ستا عزیز وطن یم
چه م خرڅ نکړے په بل
کوره ماچه بربنډ نکړے
چه زه ستا کرم پټیدل
هر نعمت چه زما ستا دے
څه به خورے چه شم د بل
څه فایده به درله اوکړی
بیا په تیر ساعت ژړل
دَ خپل باغ میوے هغه خوری
چه د بل کړه ترے شړل
که زه نه وُم ارمان به اوکړے





وی بہ تالہ شرمیدل
تربیت دے ستا پما کښ
زما تا باندے کوَل
مُشترک پہ دے مفادیوُ
مہ کوہ دیکښ خلل
داکوَل دَ بیولو دی
پخپل ځان تُورہ وهل
کوم پښتون دی کړی گوړه
خپل کاله تہ غیر بلل
تاتہ چا وئیلی دا دی
چہ پښتون دا سے کوَل
پښتون تا باندے مئین
قرُبان تا باندے دَتل
دَغان خبرے مہ آورہ
بیَنوم دا تاتہ وئیل





# خپله ژبه

محمد شاه خیال

زه پښتون یم دَ پښتو ژبه به وایم
هسې نه چې دَ بل قوم ژبه به ستایم

هر سړے دَ خپلے مورے په ژبه ناز کړی
پښتون والی "زه پښتو نه" ناروا یم

دَ پښتون پخپل پښتون کښې قدر نشته
زه به څله دَ پردو نه په ژړا یم

هر وطن کښې هر څوک خپله ژبه وائی
پښتو والی "زه سفر کښې به دا وایم"

که دَ دین که دَ دُنیا څه علم و فن دے
زه پښتون پرے په پردی ژبه گویا یم

چې زما دَ وطن ژبه پکښې نه وی





زه دَ هغه بادشاهۍ به څه پخلا یم
زه به څه وایم چه څه وُ، څه او نشو
چه ترڅو زه پردی ژبه کښې لګیا یم
اصلاحات که دَ وطن شی راته ؤپاندے
چه م ژبه پکښې نه وی ترے جُدا یم
که م ځان که م ناموس که مال وزر ځی
شه قربان دَ خپل وطن چه پرے پیدا یم
زه به څرنګه دَ دے مزکے بد غوارم؟
چه دَ دے مزکے په غیږ کښې ژوندے پایم
وے ژبه دَ پښتو په هاےُ هاےُ ژاړی؟
زه دَ خپل وطن شړونے په بیدیا یم

---





"پښتون"
مارچ ۲۹ سنه ۱۹۲۹ء

# مونږ دِ یُو

حبیب الله خان کاکا دَ ترنګزو

سرحد دِ په زلمو چمن وی مونږ دِ یو
انبار دِ تورے خاورے په دښمن وی مونږ دِ یو

خاوندہ دا دَ ظلم حکومت خو کړے تباه
زمی دِ له فساده په امن وی مونږ دِ یو

نښان دَ آزادی دِ تر قیامته وی ولاړ
روشن دِ په سرچینو شو انجمن وی مونږ دِ یو

په نم دَ اتفاق دِ تر وی باغ دَ محمد صلی الله علیه وسلم
اوربل دِ دَ تو دِ یالو په خرمن وی مونږ دِ یو

خدمت دَ وطن تل دِ وی زمونږ دَ زلمو کار
سرحد نه دِ دُښمن جلاوطن وی مونږ دِ یو





دَ باغ دَ آزادۍ بروی ماليار فخرِ افغان

ولاړ دِ سرخپوشان ترې پُر آمن وی موږ دِ يو

زلمی دِ شی آزاد دَ غلامۍ نه دَ دُښمن

درباره دِ دَ تو دِ يانو په ضِمن وی موږ دِ يُو

چمن دَ آزادۍ دِ وی صفا له خارو خسه

مُدام دَ بُلبلانو دِ مسکن وی موږ دِ يو

پنجه دَ ظالمانو دِ شی پورته له پښتونه

قابض دِ پښتانه پخپل وطن وی موږ دِ يو

ختلی دِ په دار وی غمازان دَ خپل وطن

تورمخ دِ دَ غمازه پټ په کفن وی موږ دِ يو

دا ننن چه بُت پرست دی کوم زموږ وطنيان

دا ټول په اتفاق دِ بُت شکن وی موږ دِ يو

سرحد دِ په سرخپوشو زلمو تل وی گلستان

زلمی دِ په خندا غنچه دهن وی موږ دِ يو





# بیداری

فضل رحیم ساقی

۱

پښتونه ویښ شه وخت د صبا دے
تیاره کمیږي رڼا زیاتیږي
خطر ورک شوے د یو بلا دے

۲

جرس په زوره د کوچ غږیږي
پاسه اوچت شه د مرګ له خوبه
جهان خبر کړه د لیونتوبه
سامان دِ لوټ شو کور دِ تالا دے

۳

د غل په لاس کښې مشال بلیږي
د هرچا خان یئ بنا غلے ځوانیئ
په ذات افغان یئ مرد میدانیئ
د خدائے قرآن هم په ترخ کښې ستا دے



ستا دَ عمل نه ازل جوړیږی
خلقو ته یاد دے لیونے جنګ ستا
دَ تورے پړق دَ زغرے شرنګ ستا
دَ خیبر څوکے په دے ګواه دی
که اعتبار دِ ورباندے کیږی
لر و بر دواړه جهان بدل شو
مزکه شوه نوره آسمان بدل شو
انقلاب هرڅه کوی ګکیا دے
نوی جوړیږی زاړه وَرا نیږی
قومونه لاړل درنه اوچت شول
په ترقی، آسمان په چت شول
خالله جوړ کړے جنت هرچا دے
همیشه خاندی او خوشحالیږی
دَخدائے جنت ته په طمعه ناسته
یا سه اوچت شه لته ناراسته





جنت پتا باندې ناروا ده

دَ اُوده نر کتې زېګيږي

هرڅوک بیدار شو، قطار شو یو شو

خپل خپل منزل ته په تګ ودو شو

ته لا هم داسې په خوب اُودېږې

جرس دَ تلو دِ هروخت غږېږي

قومونه ټول اُس را اوچت شو

که بې عزت وُو په عزت شو

دَ هر چا خپل خپل یو راهنما دې

دَ ده په حُکم کښېنی اُودرېږي

ساقي اوده په راوېښ په شورشي

او دَ همت په اَس به سور شي

دَ پښتو هغه متال رښتیا دې

چه ویښ اوده شي نه راویښیږي

"پښتون" ۲ اګست سنه ۱۹۲۸ء





# دَ اباسین آواز

ظفر قریشی

خیرشی عام و خاص وَ پاک ملک یه دریاب
چپې یې دَ آسمان سره تکرے وهی ستل

چپې یې دَ آسمان سره مدام وهی تکرے
سیراب یې په اوبو باندے هر ځائے دَ نزدے لرے
پښتو ته حاجت نه وی چه زه یمه بیا دَ خرے
را ورمه لهه زه خپل وطن خوږ لره دَ برے
ماره زمیداران یې کړل په دے نعمت نایاب
خیرشی عام و خاص وَ پاک ملک یه دریاب

پښتان یې فرض کړی دی دَ ملک خدمت کول

چپې یې دَ آسمان سره تکرے وهی ستل





خدمت به دَ وطن کوَم په دارنګې مُدام
وی فضل چه پما ترخو دَ پاک ربّ الاکرام
فصلونه به ښه ورکوَم هم آب تمام
محتاجه چه غلے ته پرتے نشی دَ غیر قام
ظفرؔ! اباسین ښکله خدمت کړی مکمل
چپے م دَ آسمان سره ټکرے وهی تل

---





# دشاه زلمي سندره

شمشیرخلیل

زه یو تندر په کړ زهار یم
یو سیلاب په شره هار یم
حیدري قوت م ملا کښې
ځنقیدونکې ذوالفقار یم
زما متوکښې قوت دے
دَ ولیانو برکت دے
بنه قوي زما همت دے
ارادو کښې استوار یم

دَ قرآن په سبق لوے یم
دَ اِسلام دَ مینې خوے یم





زه دَ قوم دَ سترګو تور یم
دَه وطن دَ سر دستار یم
آزادي زمونږ دولت دے
درجه ده او عظمت دے
دَ الله پاک امانت دے
زه ولاړ یمه خوکیدار یم
سر م خپل تلی کښې ایښے
ما هر کار پښا پرے ایښے
دَ خپل خوږ وطن خدمت ته
ملا ترلے تابعدار یم





"پښتون"
دسمبر سنه ۱۹۳۹ء

# وطن زما

محمد نواز خټک

ترڅو به وی غلام دغه آباد وطن زما
دُنیا به کله او وینی آزاد وطن زما

شائق به دَ جنت دَ جوره وُنه وے هرګز
ليدلے که يو ځلے وے ښاد وطن زما

ملکونه چه آباد دی خو مره ستا دَ ملن لاندے
پهٔ تولو کښ اے چرخه ! دے ناښاد وطن زما

مشرق يم نيم بدخواه شولو مغرب يم تول دښمن
اُس او غواړی دَ چا نه څه امداد وطن زما

خټک کوی دا سوال چه بيخ بنياد ئے کړی نابود
هرچا چه په ستم کړلو برباد وطن زما





# یادگار دَ وطن

مرزا تاج محمد خان موشر

چه خپل ځان کړی قُربان شی سردار دَ وطن
په آمان کړی بوستان شی مالیار دَ وطن
انا الحق کره صدا دَ منصور په مثال
سترګے سرے په هوا دَ باتور په مثال
سر سامان کړی تالاشی سالار دَ وطن
چه خپل ځان کړی قربان شی سردار دَ وطن
دَ فرهاد غوندے عزله ورځی په تکر
نه پرواه کړی دَ سر نه دَ مرګ نه خطر
خرامان ځی روان جانثار دَ وطن
چه خپل ځان کړی قربان شی سردار دَ وطن
او ویشتم اکتوبر دَ میرویس په میدان





زمونږ فخرِ افغان پرې زخمي کړو خپل ځان
دَمردان دا میدان دے یادګار دَ وطن
چه تر څو پښتون قام په دُنیا وی آباد
دا میدان دَ میرویس دَپښتون به وی یاد
ستا په سرو وینو رنګ لاله زار دَ وطن
چه خپل ځان کړی قربان شی سردار دَ وطن
ډیر هوښیار شو پیدا ډیر غمخوار شو پیدا
دَپښتون دَ کور ډیر خوګیدار شو پیدا
معلومیږی غمخوار او غدار دَ وطن
چه خپل ځان کړی قربان شی سردار دَ وطن
دَخاموش دا آواز شو په غوږ دَغماز
هاملے سوران دے لرزان خیجی زور دَغماز
زنده باد بادشاه خان شهریار دَ وطن
چه خپل ځان کړی قربان شی مالیار دَ وطن



# اباسين

عبدالاکبرخان اکبر

روان دے اباسين اوښان چپې چپې
اباسين چپې چپې اباسين چپې چپې !!
ما وويلے اباسينه! راته وايه چرته ځې؟
دا داسے په تلوارے ځې په کوزه کرندے؟
او پوه يم په دے راز کره چه ځنگرے دومره لوے؟
او دا راته او وايه چه ته پلار ئے او که خوئے؟
په څه واره اوس ستا د نوي والئ تپې؟

روان دے اباسين اوښان چپې چپې
وے "اے دعقل خويه! په هنر يا بند ئے نادانه!
غلام د کره ماده علم د زيات شه له شيطانه
تابع د اوبه، مرکه نيت د تير دے د آسمانه





سړۍ دَ دومره عقله په رازپوه نشوے تاد انه
خپل مير درنه خطا دے تا دُنيا کړه ځکه وُرانه
دَ خپل اصل اړ وکی کړېوے لکه چه سپې "
روان دے اباسين اوښان اوښان چپې چپې
اباسين چپې چپې اباسين چپې چپې !
هر څاڅکے دَ خپل اصل په زړګی کښ ځايه وُم
دَ دوی په ملګرتيا کښ زه درانه پيتی اُوړم
زه ستا پښانئے فرق پکښ دَ تورسپين نه کوَم
په هر شانتےچه کيږی دوی خپل مِيرته رسوَم
په لاړه لاړه فرض زه خپل هم ادا کوَم
په واړه تندَغړو زه خپل ځان فدا کوَم
طلب کښ دَ وصال يم ناقرار دَ ورځے شپې
اباسين چپې چپې اباسين چپې چپې !
لولئُ م ده په ديکښ ځم دَ لوړے نه په ښکته
شوے کړے م شمله ده دَ غرور کبر دَ بته





په لار د جنس دَ مینې هر مشکل وهم په لته
اے کونډ سبق واخلې ته دَ خدائے له دے آیته
عبرت الله او بو واخله کړی قرار په یوه سته
که څاڅکے که ډنډ وي که دریاب ډک له هیبته
همجنسه سره یو شو نه ترے بنکته نه او چته
زړ ګے کړه ډک دَ مینې دَ همجنس دَ مُحبته
زه لوے یم زور آور یم هم له دے دَ برکته
نه ویره کړم دَ غرنه، له کړنګ نه له کړپے
روان دے اباسین اوبنان او بنان چپې چپې
اباسین چپې چپې اباسین چپې چپې
زه نخښه دَ قدرت یم ته دَ خدائے نائب په مزکه
زه تا ته وایم ځکه
بد نامه دِ خدائی کړه خپله تله دِ کړه سپکه
دَ مزکے تل ته لاړے وے او چت ته له فلکه
غلط دِ استعمال کړه که عاقل یې ته بیشکه





دُنیا به ته جنت کړے زمونږ طمع وه دا کلکه

دَخپل هُنر د لاسه په لړزان یے بے درکه

و سلے دَ تباهئ ځانله انسانه جوړه وے

له ویرے دَخپل جنسه پټ تل وی رپ رپے

اباسین چپې چپې اباسین چپې چپې

---





# لاخوزه زلمے یمه

میاں سید رسول رسا

تیر په هیرو شمار کړه او ته پرېږده پخوانۍ خبرے
ما باندے خوږے لګی دا خپلے دَ حُوانۍ خبرے
ذکر دَ آسونو دَ ښکاروونو دَ بازو دو کړه
هم دَ سپینو تُورو، توپکونو جهازونو کړه
باز یم لکه باز په عزونو کړخم سیلانے یمه
لاخوزه زلمے یمه

پرېږده دا دَ مرګ ستړے ستائینے دَ بلا خبرے
پرېږده دَ بیلتون او دَ وصال او دَ اشنا خبرے
وخت دَ سپینو تُورو دَ خزیا او دَ شرنګار اغ
وخت اُس دَ مړو دے او دَ مردانو دَ غوغا راغے
تُوره دَ همت زما پلاس ده ابدالے یمه
لاخوزه زلمے یمه





نوې رباب سور کړه نوې دور دې نوې ترنګ غواړو
نوې جام پیدا کړه اے ساقي یا او نوې چنګ غواړو
ستا زاړه شراب زړے پیاله کښ اُس دَ څکلو نه دي
نه ورته نغلونه وائے دا اُس دَ پیسو نه دي
زه خو در نه لاړم زه سالم په زړه غمے یمه
لاخو زه ذلے یمه
تنګ ستا دَ کبابو دَ شرابو دَ محفل نه شوم
داخو سر د ړ دے دے زه بیزار دَ دے غوبل نه شوم
نه اورمه نورے ستا دَ چنګ خوشے غزلے دي
ژوند پکښ هیڅ نیشته دا دَ مرګ سترپېدلے دي
لا پما کښ ژوند دے زه دَ ژوند بښائسته کالے یمه
لاخو زه ذلے یمه
زه قسمتي نه یم په قسمت پورے خندا راځي
نه قسمت نه ناست یے ستا په حال ماله ژړا راځي





زه چینګی وجود مِ دَ باتور سره جنګول غواړم
مرګ دَ عزت غواړم دَ ذلت ژوندون خلاصول غواړم
ورک دِ شی قلم، تُوره مِ کار ده توریالے یمه
لا خو زه زلمے یمه

داز ما وطن دے، دا وطن دَ بنو خُوانانو پلار
دلته توریالے بنا یُسبته معشوق دَ زن صفت دے خوار
دلته کښ میرویس او خوشحال خان او احمد شاه بابا پیدا
دلته کښ محمود بابا و عم غوری او همشیرشاه بابا پیدا
زه عم شیر بچے یم جنګیالے یم ننګیالے یمه
لا خو زه زلمے یمه





# افغان یو دے

محمد اکرم مشهود

دا شه غونښته اے پښتونه چه ژمونږه قرآن یو دے
الله یو نبیؐ م یو دے مرکه یوده آسمان یو دے
دی جُدا جُدا ښاخونه خو تنه دَ ټولو یو دے
دَ هامون کوټے تر سند هم واړه افغان یو دے
په نفاق او اتفاق کښ دَ قوم مرگ او ژوندون پټ دے
چه دا غونډ شی خه به جوړ کړی چه جُدا شی نقصان یو دے
لوئے واړه چه سره یو شی شخصیت هله جوړیږی
لوے وړے ښختے دیوال شی تر یو شان شه انسان یو دے
دَ اُلفت په سرزمین کښ دَ اخلاص بُوټی پیدا کړه
تر شه دَ ژوندون واخله دَ وطن گلستان یو دے
دَ محمد تیرے کړه نه دَ اُلفت رښا پیدا کړه





بتول را غونډ کړه ورته وايه د خلاصۍ مې داستان يو دے
په يو يو آواز پښتونه سل سل کسه رابيدار کړه
سرګند ځان او خپل نشان کړه د ويناکه زبان يو ئې
د غفلت سيلاب لا هو کړے اے پښتونه رابيدار شه
مرګ بهتر دے پر غونډېږي خپل پردي پر فغان يو دے
د مشهود د زړه آرامه راشه راشه انتظار کړم
په بار بار به در نه ځار شم در سره پيمان يو دے

# مصيبت!

محمد اکبر خان خادم

مال او ملک عزت چه لاړ شي زياته ناچاري څه وي؟
قوم چه شي جاهل له دے نه زياته بيماري څه وي؟
نصاب چه د تعليم دَ غلام قوم شي دَ غير قوم پلاس
تل به غلامان وي دَ دے قوم به خود داري څه وي؟
سبق هميش ياديږي دَ بچو پخپله ژبه کښې
ياد دَ پردي ژبے په دماغ کښې پائيداري څه وي؟
څوک چه پامته داره وي بل قوم ته تريوے سترے
زياته به له دينه بيکاري دَ قوم خواري څه وي؟
څوک چه خون دَ ملک دَ قوم کوي په يو خطا باشه
زياته به قومي له دينه نوره غداري څه وي؟
څوک چه بے تيکسه دَ مظلوم ژړا ځاري نه او دري





زیاته به له دے نه دَ حاکم ستمکاری خه وی؟
ځائے پځائے چه ملک کښ پورته کیږی اواز ونه بیل
زیاته به له دے نه آزادی کښ دشواری خه وی؟
احساس چه شی پیدا په غلام قوم کښ دَ قومی تعلیم
زیاته به له دے په غلام قوم کښ بیداری خه وی؟
څوک چه دَ خپل ملک دَ قوم خدمت په ځان او مال کوی
زیاته به له دینه دَ نامدارو نامداری خه وی؟
څوک چه په زړا دَ دے قومی خادم دا ویښ نشی
زیاته به قومی زړا له دے منت ځاری خه وی؟

---

# یوځل راشه......!

حمزاللّٰه خان حمزه

منتظریم ستا دَ بنګلی مخ دیدن ته
یوځل راشه آزادی زمامسکن ته

ستا دَ مینے په شرابو داسے مست یم
چه م اوشلید ؤګریوان رسی لمن ته

چه مې دَ سروګلونو پکښ خیجی
اُور به و لے نه لګیږی دے ګلشن کښ

دَ حمزه شعر قاصد دَ پښتنو دے
چه پیغام دَ آزادی راوړی وطن ته



# دَ خُوشحالخان په قبر

عبدالله جان اسیر

نن بیا په گلستان کښې بُلبُلان چغار لري
نن بیا زمونږ چمن په غیږ کښې پروت بهار لري
قُربان له هغه خان شمه قربان له هغه ځوان
نعرې چه قومه قومه پاس پسې دَ دار لري
هم دا هغه مرقد دې دلته پروت دَ خوشحال خان
صحرا شوله گلزار چه دَ شهید مزار لري
کرلې چه کوم تخم خوشحال خان نخیلو وینو
نن کوره هغه تخم فصل څنګ تیار دري
په ژوند کښې برابر په مرګ کښې هم ترینه کم نه دې
او رنګ که رنګار ننګ له بادشاهي سنګار لري
خان یک یو ځې جنګ له ځي بهرام ترینه دبیل
دُښمن دَ ستر ګور پ کښې اباسین نه پار یري





سوات، سمه، آفرید وباندې پړه لګه مار غشو
هم بولوکړوجواب یوآفرید وکړ پار لری
مرشولوخوبه ژوند کړ اوریکرې به تصنکه نشو
ژوند ون دَ غلامی نه کوره خومره عار لری

استیر ورته سلام کوی مُدام په دواړه لاسه
اُس اخلی یاکه نه اخلی دا م خان اختیار لری

---



# چا خوب دَ بیغمی کښې خه دولت موندلے نه دے

عبدالخالق خلیق

دے باغ ته دَ دُنیا داسے انسان راغلے نه دے
چه بیا ترے په افسوس او دَ ارمان وتلے نه دے
لیکن هغه نیکیان نه لری هیڅ په زړه ارمان
چه نفس یے دَ گناه په نجاست لړلے نه دے
بل هغه زلمے چه یے خدمت دَ وطن کړے
تکلیف دَ قام دَ پاره یے تکلیف گڼلے نه دے
که ته هم آرزو مند یے چه دِ پاتے ارمان نشی
ژوندون ته دَ دنیا دِ چاو دا ن وئیلے نه دے
نو پا سه اے پښتونه ته خدمت دَ وطن اوکړه
خدا ئے دَ ملک دَ قام چا په انسان شمیرلے نه دے
نو د خوب دَ بیغمی مه کوه پاسه را بیدار شه
چا خوب دَ بیغمی کښې خه دولت موندلے نه دے





دَ نا ستے په دُعاګانو دِ اثر منېشته تر هغې

په ملا چه کمر بند دِ دَ عمل تړلے نه دے

په غارګانو پروت مزرے دَ شل ګیدړو سرپوشادے

ترڅو چه په ځنګل کښې دې په ښکار وتلے نه دے

مجنونه دَ لیلیٰ زلفے به درنشي پلاس

ترڅو چه ور پسے دِ بحرو بر ګرځیدلے نه دے

ستا لافے دروغ ټولے دي په فن دَ عاشقۍ کښې

چه سر دِ په تیشه لکه فرهاد وهلے نه دے

بازي چه یئے دَ سرنه ده په ډلېس دَ عمل ایخې

هغه کس چرے داؤ دَ کامیابۍ ګټلے نه دے

کوم قام ته چه خپل مال و سر خوار وي له عزته

هغه په منار و دَ ترقۍ ختلے نه دے

کوم باغ چه نهال شوے دَ محنت په خولو نه وي

په سوري دَ آرام ترے چا مزے خوړلے نه دے

یو علم بل هنر دے چه وطن پرے پورته کیږي

بے علم و بے هنره چا لائق بللے نه دے





دعلم ترقی کیږی همیش پخپله ژبه
ماځوک په پردی ژبه بهرمند لیدلی نه دے
خدمت دَ خپلے ژبے لوے خدمت دَ ملک و قام دے
دُشمن دَ خپلے ژبے زمانے پالیلے نه دے
نشان دَ پښتنو به پورته نشی په دُنیا کښ
ترڅو چه دَ پښتو ژبے معراج لیدلے نه دے

---

# زۀ دَخپل قامه قُربان یم

اشرف مفتون

دَخزان دَ سپیره باده اوچه وُنه دَبوستان یم
مات جرس بې پراؤ بروت یم ناخبره دَ کاروان یم
دَ قفس له غلامۍ نه په تښته کلو پرواز کړم
بې همت، ناتوان نه یم له نفاقه سرګردان یم
دَغزا په کار پوهیږم زۀ افغان ځوئے دَخالد یم
چه خپل سر کړمه تلې کښې خبردار شه هغه ځوان یم
که ژوندے یم خو غازی یم چه مړ کاندی شهید شم
یم مئین په شرنګ دَ تورے بنه مضبوط په خپل ایمان یم
لکه رعد هسے ګرج کړم په رفتار له باده تیز یم
پاس تر عرشه م فغان ځی نن له غم څخه لرزان یم
جګر سوزیم جهان سوزیم او ردَ قام له درده اخلم
پتنګ ځان سیزی په شمع زۀ له خپل قامه قربان یم





کله مد کړے کله جذر کله موج وهے کمه شته
زه به څه ویره لټا کړم چه پخپله یم طوفان یم
یم روښان دَ قطب ستورے دَ راهرا و رهبری اکړم
په صحرا او په ځنګل کښ ځلیدونکے په بوستان یم
غیرت هم زده جرأت هم زده همت هم زده محنت هم زده
خود داری او ننګ هم زده خو دَیو آواز ارمان یم
دَ ایمان ډال به په سر کړم دَ تکبیر توره به لاس کښ
په محشر به خدائے ته ژاړم چه له درده پرېشان یم
دَ مفتون نسو به څه کړم؟ دَ مجنون جنون زه غواړم
دَ لیلیٰ دَ عشق په زنځو چه تول عمر بندیوان یم

---





# جنګ دَ آزادۍ له همیشه زلمي وتلي دي

پېرنګوا له کښې چه پښتنو دَ آزادۍ دَ پاره جد وجهد شروع

کړو. دا نظم هغه وخت په پورتنۍ طرحه لیکلې شوے وَ:

یاسین خان دَ کالوخان مرحوم

"جنګ دَ آزادۍ له همیشه زلمي وتلي دي"

چاچه ملاتړ اوکړو په جهان کښې شرمیدلي دي

لږ خلق چه تېنګ دَ آزادۍ په یو لرۍ کښې شي

یام دَ سلطنت باندے دَ دنمر هسې ختلي دي

تیر شه له خپل سره ویره لرے له خاطره کړه

څوک چه ویره نکړي دَ دشمن کروت نه وتلي دي

ژبه زړه او لاس دریواړه یو کړه ځان محکم کړه ښه

څوک چه متفق شو بیا ترے غرونه تښتیدلي دي

نښان دَ آزادۍ په لاس اوچت دهغه خلقو وي

څوک چه په غیرت په یو میدان کښې اودریدلي دي

درد زړه کښې پیدا کړه او په قام باندے فدا کړه ځان

څوک چه ځان فدا کړي لکه ستوري ځلیدلي دي





ځوک چه د خپل قوم په سر لوړې پاندې مئين وي تل
خپل خوار ځانونه يې په سودا د ز باند سېزدي لي
راس د ديو بل او نيسي محکم او سي چه سېل نشي
اے پښتونه قامه! چه څوک يوشي تل ختلي دي
خدايه ماته ګډه کاته زمونږ په دښمنانو کړے
دوی له ډيره کبره پښتنو پورے خندلي دي
ځان ته چه ځان او نه والئ هله سلطاني کوی
بے له مشقته څوک راحت ته رسيدلي دي؟

---

# د تیراه د لام شهیدٔ ته

مُراد شنوارے

اے په دے دشته کښ دَ کوبنی قبر کی ښنسته!
اے دَ پیش قبضے، کردنی دَ توپکی ښنسته!
اے دَ خرپا، پر قاء، زلفا دَ سرتیری ښنسته!
اے دَ خیبر دَ اوچو تږو دَ سپرلی ښنسته!
در سرهٔ غاړه غړی ځوانے ولولے سنجے دی
بر یبنسا دَ تورو دَ توپونو زلزلے سنجے دی
دَ سرپه بیعه دِ شهیدهٔ داجنډے کښلے
دَ ننګ پتنګه! بلے بلے دِ دِیوے کښلے
پښتنے تورے دِ عالم کښ فسانے کښلے
هم د سر او د دنو دِ جُمهے سرهٔ تپے کښلے
تا دَ تیراه په پښتنه مزکه حنبل سر ودکړے
جابر فیرنګ له دِ دَ شال بغامے تهتر ودکړے

یادے کړه توپے دَ فیرنګ چه تیراه اُور واخست
دِپوره وُرونه پوهیږمه تَوم پور واخست؛
څه یۓ تقصیر وُ، دَکور به نیۓ چه کور واخست
دَ ترمو وینو نه تیراه څه له تکور واخست؛
بار ے زکونه غورزوُل په وینو پوره تلله
په ژړا سره په تنکو ځا منو بُوره تلله
بیا نو فیرنګ همه پښتون پرے پرے کړولتا
هم یۓ پرده ے خټک مومند اودو سفر کړولتا
څوک یۓ په زور څوک یۓ په زرو فیرنګی کړولتا
تر تالا دَخپلواکۍ یۓ پسرے کړو دستا
خوته په ننګ دَ پښتانه کفن په سر اُووتے
ته دَ دېښته په تعاقب کښ دَ خیبر اُووتے
شهیدلاهسکه دِ غرپه دَ دِغوغرو نو کړله
لار دِ بدله دَ سیلو دَ طوفا نو نو کړله
تا فیصله ځان ته حیرانه دَ وختو نو کړله
کوته به خوله دِ فرښته دَتقدیرو نو کړله





اُس قافله دَ نوی کول دِ په پل پل پسے ځي
ستا په قدم ستا په عمل ستا په منزل پسے ځي





# او! زه اباسین یم

آیاز داؤد زے

زما چپه کښې ډیر رازونه دي رمزونه دي
زما په غور زنګونو کښې اوده ډیر داستانونه دي
زما په ګټو، شګو کښې پراته ډیر عظمتونه دي
زما په زوَر کښې تلي بهیدلي ډیر عمرونه دي
او! زه اباسین یم اباسین یم دَ وختونو پلار
او! زه اباسین یم اباسین یم دَ سیندونو پلار
زما په ارته غیږ کښې لوبیدلي ډیر وختونه دي
زما سینې دَ پاسه اوده شوي ډیر دورونه دي
زما دَ پاسه تلي اوراغلي ډیر قومونه دي
ما ته تور زنانو غورځولي څپل ډالونه دي
او! زه اباسین یم اباسین یم دَ وختونو پلار
او! زه اباسین یم اباسین یم دَ سیندونو پلار





پرو شاعرانو دا زما او یه ستا شیلی دی
زما وَت اپریوت ته مړلی ډیر رسیدلی دی
زما په غلغلو کښې ډیر نکرونه اخستلی دی
خوزه نن په جار وایم چه دا وارو ه تیرو تلی دی
زه دَ سره نسیم دا دُخلقو دَعُمرو سنو لار
او وا زه اباسین یم اباسین یم دَسیندونو پلار
شاخکی خاخکی جمع شول لختی شول بیا خوړونه شول
دغه وارو یو شول چه یو ځائے شول نو سیندونه شول
بیا کښې چه قتا شول لازواله قوتونه شول
دا دَ وحدت زور دے چه تابع م سمندرونه شول
وایم څه چه وایم اُس به وایمه په چار چار
او وا زه اباسین یم اباسین یم دَسیندونو پلار

---





# دمجاهد چغه

يونس خليل

رنګینی مِ دَځوانئ د ويښې رنګ
ترانه مِ دَ ژوندون دَتورې شرنګ

خپل همت به نه ته غاړه دَسکون شي
که دریاب دَ زمانې دې په غور زنګ

دَ تورې ويښې سرخي مِ به جواب وي
که را پورته راته سوال کړي څوک دَننګ

يو ذره يم مګر شان دَ بندګۍ مِ
وسعتونه دَعالم دي ورته تنګ

عظمتونه دَ ژوندون دي راته داسې
لکه ناز دَمحبوبې وي شوخ وشنګ

---



# غازی فخرِ افغان!

عبدالودود رفیق

نظر کښې یکسان دے　　　په نوم چه څوک انسان دے

یو رنګ دے ستا سلوک دَ سکھ، هندو او مُسلمانه

غازی فخرِ افغانه!

داستاذ و ینو رنګ دے　　　سرحد چه پرے ګلرنګ دے

وطن دِ ګړو ګُلشن پخپلو وینو له بیدیانه

غازی فخرِ افغانه!

آباد به ګلستان شی　　　پوره که به ستا ارمان شی

آخر به یورپ ستا په همت جوړ شی له ایشیانه.

غازی فخرِ افغانه!

زاړه که ماشومان دی　　　که ځونه که ځوانان دی

روان در پسے سم دی نه ویریږی کله بلانه

غازی فخرِ افغانه!





د ناسته سټاپه سوری رفیق چه د دُنیا کوری
وربږی هر ساعت پتار حمت له دے آسمانه
غازی فخرِ افغانه!



# مُستقبل

لطیف وهمی

اُمید مې دا دې ځلانده نمر به یو وارې مسک شي دَ دې ځلا نه
دا تورې تورې تیرې چې ښکاري یو ځل به نرۍ شي دَ دې فضا نه
دا ازګي زارې مې بې پا پوښې شي بیا به تا نه مې تیریږي بد او کړي
خوارې دا سې خزان اول هم لیدې ما دې په دې ودانه
دا سپینه سپینه پولې پولې نن الوځي ګل که ته باغ ته لاړې
دا غارې غارې به وار په ګل شي زمانه دا سې دَ کار روانه
دی ستړې ګې غمجن مخونه دَ چا په طمع چې لاړې ګوري
وه انتظار کړي زما دَ یاده یو وارې دا سې دَ چا زمانه
چپې چپې شوې او به دَ دریا چې خومره خومره نرمې دَ سو غاره
نه وُ خطرناک دومره طوفان چې خومره زیږدم دَ دې بلانه
منم منم دا که خوک او وائی زمانه لاړه اخې فخ په وړانده
نه هم رضا یم په دا سې برتک ارنګه لې شي که لو لمانه



زما دَغيرت که خوک قايل غرض ليدل وی نو دلته راشه
غرانګه خيبر سبق دے لری لمن زما فسانه
پټيږی ستوری پناه غواړی دَ نمر دَشغلوله آب وتابه
بدل بدل دے دَ نظام کورټ څه بل شه بل څه کوی زمانه
ده توره تياره پراود بيريه اوبن دَ هم ډک دشر څنانو
په دا سے حال کښ زړه پکار دے که څوک شی پاتے له کاروانه
مُسکے مُسکے دے لطيف وهمی ته اوکسه بيلے حُسنے دَ ليدے
شو ايسته بيسته اُوبنان تس نس ګهار خلاص شو دَکاروانه

---

# غیرت او عبرت

ولي محمد طوفان

په غیرتي پښتو نه چه ننګ و نام او کړو
څه له د بل پسې ځې راشه خپل قام او کړو

د اټک ور لرې دے اجنبي راغلے په کور
ستا په زړه خونه کښې راننوځي په زور
دشمن د پلار نیکو نو اُس د جور شو د رور
د بغاوت په مثال بيابه په ست دې وی سور
څنګه خاموش او ده یې هیڅ خبر نه دے له چور
اے د پښتن ساتنه قبلوے ځان لره اور

سر په تلی را او څه د وطن نام او کړو
څه له د بل پسې ځې راشه خپل قام او کړو

په ویښو سر وګټے خپل حکومت ورکوے
اے په ذلت مینه بل له عزت ورکوے





راس کښې دَ غیر و غمازِ پوره ملت ورکوي
دَ هلاهل په بدل جام دَ شربت ورکوي
دَ آزادۍ شریفه دَ خدائے نعمت ورکوي
اُف غلامي قبلوي تاج دَ عظمت ورکوي

دَ کوانډیانو پښتان ځانله نظام اوګټو
خه له دَ بل پسې ځې راشه خپل قام اوګټو

الوتل نه کوي باز تور و زاغانو سره
ستا ګذاره کرانه ده دَ ظالمانو سره
ځاۓ دَ غریب کله وي سر نوابانو سره
بیا دَ چرچل دَ زر و کاسه لیسیانو سره
ژواک به دِ تل وي خراب دَ نهکانو سره
اے دَ افغان بچیه شه افغانو سره

پخپله کړمو و یئوياپه صمصام اوګټو
خه دَ بل پسې ځې راشه خپل قام اوګټو

خلق دَ وطن دَ پاره څو که دَ دار بُنکلوي
دَ شهادت په طمع غازي مزار بُنکلوي



کُل هغه کس بیا موٌمی چه هغه ځار ښکلوی
دلنشین عاشقان برق و شرار ښکلوی
تل دَ راحت په تلاش سرے آزار ښکلوی
دَ و د انګه په غرض مزکه سسپار ښکلوی
یا به ایرے خاورے شو یا به آرام اوکړو
څه له دَ بل پسے ځو راشه خپل قام اوکړو

اے دَ خالد بچیه دغه وطن دَ مونږ
دَ ابدالی وارثه دا شین چمن دَ زمونږ
په دَ شیر شاه زمریه ولښ شه مسکن دَ زمونږ
دا دَ غیرت دے مقام وخت دَ کشتن دَ زمونږ
ښکلے صوبه زمونږه ځیګه او تن دے زمونږ
فخرِ افغان زمونږه غازی تورزن دَ زمونږ
راځه چه ځو ور پسے بلند مقام اوکړو
څه له دَ بل پسے ځو راشه خپل قام اوکړو

---

پښتون
اګست سنه ۱۹۴۷ء

# پښتونه!

مولانا شاکرالله د نوښهر

په دُنیا کښې هغه کس خټه نه دے
چه د ملک د پاره يې سر بائیللے نه دے
هغه قوم لشی قومونو کښې شمیرے،
چه په تار د اتفاق کنډلے نه دے،
ښن چه ته پښتونه روستو پاتې کیږے
تاتاریخ بوره د افغان کتلے نه دے
راشه اوګوره د قیس عبدالرشید حال
چه خطاب يې د بطان کتلے نه دے؟
غورستان نه د خالد په جواب راغے
داسے بل پښتون لا ما لیدلے نه دے
چه خالد اسرائیلی سپه سالار وی،
واپس هغه فوځ میدان نه تللے نه دے





چه عادت يې غلامي صبا بېګاه وي

هغه قوم لا چا په قوم بللې نه دے

په آواز دَ محمدؐ جهان بېدار شو

چه هغه يو دم آرام خوښتلې نه دے

ابراهيمؑ بانده ګلزار اور دَ نمرود شو

چه يو آه يې له دهان ويستلې نه دے

شاکر وائي تر هغې به آزاد نشي!

چه قرآنِ خپل پيشوا منلې نه دے

---





"پښتون"
جنوري ۱۹۲۹ء

# پښتو!

ارباب عبدالعلي خان

رب دَ پاره دَ دے خوبه شه بیدار
چارچاپیره درنه توَ شولو اغیار
خوبه پر دت یئ په پنجره دَغلامۍ کښ
قفس مات کړه ترے بهر شه په تلوار
یاکوشش اوکړه پښتونه ځان آزادکړه
یاپه سرو وینو وطن دِکړه ګلزار
که دا غوارے چه قاموکښ شناښم
دَ پهانسی رسی کړه دَغاړے هار
که دَ ملک آبادید وته دِ زړه کیږی
ځان آزادکړه شه دَسیالوپه قطار
که سبق دَاتفاق غوارے افغانه!
آزادی به درته هله شی اظهار
آزادی ده منتظره پښتنو ته!
په آواز دَ انقلاب که شی بیدار

# دپښو ترانه

عبدالرحیم سندا

یمه دَ شاهین بچے یمه دَ شاهین بچے

درُوند نما قدم زما قدم دَ کُل جهانه دے
عزم م اوچت کړے ډیرا وچت لا دَ آسمانه دے
دا رنګه عادت زما په وینه کښ پښوانه دے

یمه دَ شاهین بچے، یمه دَ شاهین بچے

مُنګلی بهاروونه م درنو درنو وزر وکښ
هغه آهنی قوت زما دَ بنوزغرو کښ
شته دے ذوالفقار زما په پښو پښو رو کښ

یمه دَ شاهین بچے، یمه دَ شاهین بچے

ستر کوکښ نظر هغه نظر هغه نظر لرم
وارۀ دښمنان له دے نظرۀ پُرخطر لرم
داسے یو ځیګر هغه ځیګر لکه حیدر لرم

یمه دَ شاهین بچے، یمه دَ شاهین بچے





ما ته بلاَ هو دَ تُورے شرنګ اول وئیلے دہ
مورِم راته مینه دَ وطن دا سے سنا ئیلے دہ
عن ژر او سه پورِم په زړه کښ لا پئیلے دہ

یمه دَ شاهین بچے، یمه دَ شاهین بچے

---





# ننګیالے پښتون

صاحبزاده محمّد آلیاس خان

څوچه رنګ دَ زړه په وینو هرخار نه دے
داچه تړیئ بهاد بولے بهار نه دے
جام دَ مے که دِ سر پورته په هوا کړۀ
سرچه پورته په دار نشی سردار نه دے
په ګرداب کښ له نهنګه هم کنار نشه
سلامت دَ آباسین په کنار نه دے
دَ پستی تر ژوندۀ مرګ هم آمان غواړی
ننګیالے پښتون دے ژوندته تیار نه دے
په غوغا د دار و ګیر کله تر هیږی
معلومیږی شیرا اوده دے بیدار نه دے
دَ پښتو کانے اُوبو کښ نه ورستیږی
دا متال یم بے معنی او بیکار نه دے





مسے نه چه دے قِلّت دَ سرفروشو
ولے کرم لا دَ حُسن بازار نه دے

طوفانی موجونه پت م په ذره کښې دی
م قرار، قرار لیدے شم، قرار نه دے

پیش خیمه دَ محشر خیز وسرو لمبو ده
داغبار غبار چه ښکاری غبار نه دے

زولنے یے، پایوُسی کوی الیاَسه!
سرودی دَ نامردانو شعار نه دے

---





# بیداریږه!

خورشید آپریدے

تورماښام په اختتام دے بیداریږه
دَمشرق افق ګلفام دے بیداریږه

لاتر اوسه دَغفلت په سین کښ غرق یې
نمرختلے دے په بام دے بیداریږه

اُس دَ شپې هغه طاقت هم بس زائیل شو
دَ سحر منزل یوګام دے بیداریږه

نن په سترګو دَغریب کښ سرے شغلے دی
دَ ظلمت سیلاب ناکام دے بیداریږه

دَ شاهانو کشتی ډوبه ډوبه کیږی
بیدار شوے بیا غلام دے بیداریږه

دَ انسان دَ ارتقاء منزل نزدے دے
دا سفر هم بس تمام دے بیداریږه

چه مخلوق به پے ډلے ډلے بیداریږی
نبی هم دا هغه مقام دے بیداریږه

# دا دَ مزدورو وینې دي

عبدالمالک فدا

چه پرېمزې کوي اغیار دا د مزدور وینې دي
چه ظالمان شو پرې تاجدار دادَ مزدور وینې دي
دا دَ آسمان لمنې سرې چه وي سحر ماز یګر
نه دې شفق که یې هُښیار دا دَ مزدورو وینې دي
بغیر قیمته دَ یو خیز وینې تو لې نشي
دا چه ویرپا د روي هر وار دا دَ مزدور وینې دي
دا میخانه کښې چه خمار دَ سرو شرابو وینې
ترینه چاپیره وي سرشار دا دَ مزدورو وینې دي
دَ وطن بوټي زرغونیږي دَ مزدور په وینو
رنګ چه ترې اخلي سیب آنار دا دَ مزدورو وینې دي
دا چه خوانچه کښې وي کُلل قسم نعمتونه همیش
عیش پرې کوي سرمایه دار دا دَ مزدورو وینې دي





خرمن هسې وکې دی زمونږ پان سپاری نه ده دا
چه شونډے سرے کړی پرے غدارد ا دَمزدور وینے دی
دَ زهرو جام درته په لاس کښ دے ښیولے غلیمٔ
چه نوش یې نکړے په تلوار دا دَمزدور وینے دی
عبدالمالکه! خوله یې پرا سنزه غلط پرے نشے
پیاله چه درکړله غدارد ا دَمزدور وینے دی

---





# آباسين

نادر خان برمي

نوم دِ اباسين دے څکه لوے یئے په سیندونو کښې
ستا دَ عُمر نشي اندازے په تاریخونو کښې!
ته دَ دے دنیا سره په عُمر برابر یې
ته دَ مورخو په نظر کښې معتبر یې
څومره تهذیبونه دَ قومونو ستا لمنه کښې
اُو بناته فنا شو څوک ګڼیا دی په خاته کښې
ته چه خندګه وګهغه سے یئے اویئے به دغه سے
ته په غور زنګونو تلے یئے او ځے به دغه سے
ستا دَ کودرونو یو رومان دَ هیریدونه دے
ستادَ تهذیبونو یو زمان دَ هیریدونه دے
مونږه په خمیر اخلے ستا او به شیرینے دی
تا سره شریکے په دے وجه زمونږ وینے دی.





مزے دَ وطن زمونږ ه تا سره خېرازے دی
صف کښې دَ دُنیا څګه غرږې ه زمونږ درازے دی
ستا په کانو شګو کښې دَ زرو انبارونه دی
تاراخواره کړې لکه جال رانه نهرونه دی
تا مجاهدین وَ اسلام ته هرکلے اووے
تا دَ مُسلمان نوی نظام ته هرکلےاووے
ستا یخوچپو کښې م نارے دیرے وهلی دی
څکه عظمتونه ما بېرَزې درله ستایلی دی

---





# طالب علم ته

فضل کریم

اے دَ قوم دماغ یې ته
اے دَ ملک چراغ یې ته
اے دَ لاله داغ یې ته
یک تنها روغ باغ یې ته
ته دَ وطن ننګ و نام ته دَ منزل نخښه کام

روح دَ قوم زینت دَ قوم
علم او دولت دَ قوم
نوم نشان عزت دَ قوم
علم هم راحت دَ قوم
فکر نه دَ قوم مدام تو له دُنیا تا ته دام





ګل وی دَ ګلشن ښخښنه
خاوره دَ وطن ښخښنه
مشک وی دَختن ښخښنه
عطر دَچمن ښخښنه
ته یې دَوطن پیغام نیک او بد دی ستا په نام

ځان نه بې خبر یې ته
ښارو باندې سر یې ته
سترګو کښې نظر یې ته
زړه ورونو کې دلبر یې ته
شاته کړه شراب وجام هرطرف دَ زلفو دام

هر علم و هُنر کړه خپل
خپل ضمیر ځیګر کړه خپل
سمه همه غر کړه خپل
دا سپوږمۍ او لمر کړه خپل
ته شه دَحیرت مقام فضل کریم کړی سلام

---



# قومی ترانہ

سیدہ بشریٰ بیگم

وینے چہ توے کرم پہ وطن دَتن زینت دے زما
دَ قوم دَ پارہ قربانی دَ سرفطرت دے زما
شکلے پیالے دَشہادت بہ زموبز ھیرے نشی
ھغہ قصے دَبهادری بہ چرے ھیرے نشی
دَخاؤرو لاندے بہ زموبز کارنامے زیرے نشی
دَمصیبت دا ورځ شپے بہ نورے ډیرے نشی
مقابلے تہ دَ تکلیف وسلہ ھمت دے زما
دَ قوم دَ پارہ قربانی دَ سرفطرت دے زما
ماتہ تاریخ پہ حنیو وینو لمبیدل یادہ وی
پہ کربلا کښ دَحسینؑ قربانیدل یادہ وی
یوہ کرے دَ ژوند آزادہ تیریدل یادہ وی
پہ ھر وطن کښ خود اختیارہ اوسیدل یادہ وی





کوم اعلان دَ غلامئ دَ بل نفرت دے زما
دَ قوم دَ پاره قربانی دَ سرفطرت دے زما
زه چه محمود شوم دَ وطن مینه ایاز لرمه
دَ آزادئ دَ باغ بُلبل یم سُوز گدا ز لرمه
لکه رباب په رنګار نګ نغمو آواز لرمه
زه په زړګی کښ دَ د لبرسره پټ راز لرمه
لکه اکبر سره دَ هر قوم اخوت دے زما
دَ قوم دَ پاره قربانی دَ سرفطرت دے زما
دَځان په وینو آبادی ده، وطن راج وینمه
پس دَ مظلوم له قربانئ ظالم تاراج وینمه
په خو قدمه کښ دَ قوم محکښ معراج وینمه
دَ باز په پښو کښ په هوا دښمن دُراج وینمه
دَ غلامئ په ژوند کښ وینم کوم عزت دے زما
دَ قوم دَ پاره قربانی دَ سرفطرت دے زما
سینه مې چاک فریاد دَ زړه واره پُرنے کوینه
دَغلامئ په چړ و موږ نه ترا زے کوینه
دَ صبر جنګ به ګذاروِنه دَ نیزے کوینه





پس دَ محنت به شیدایان ملکي مزې کوینه
دَ ځوان مردي میدان کښ هر زحمت راحت دے زما
دَ قوم دَ پاره قربانی دَ سر فطرت دے زما
بے خوف خطر به قربانی دَ سر په جار کړُو مه
له مرګ نه پسته به زه وصل دَ دلدار کړُو مه
لکه خوشحال دَحقیقي ژوندون معیار کړُو مه
آبِ حیات دے قومي عشق دا اقرار کړُو مه
والی س۔ب چه سوال له خدائے دَ ملک خدمت دے زما
دَ قوم دَ پاره قربانی دَ سر فطرت دے زما

---

"پښتون"

ستمبر ۱۹۴۰ء

# قومي ترقي

الف جان خټک

پښتونه پوره شه قامونو کښې خپل قام پوره کړه
بيا په دُنيا کښې دَ پريوتي پښـتون نام پوره کړه
ګوره قامونه ټول په بام دَ ترقي اوختل
ته څه ته ګورې؟ ترقي په لوړے ګام پوره کړه
پريوتي قام له ترقي بويه دَ برق په رفتار
دَ هر سحر په مقابل کښې خپل ماښام پوره کړه
بيا په دُنيا کښې دَ قامونو انجمن جوړ يږي
دے انجمن کښې دَ کمنام پښتنو نام پوره کړه
دَ يو څو کسو ترقي ته ترقي مه کښه!
که ترقي غواړے دَ قام نو خاص وعام پوره کړه
بے دَ نظام نه ترقي دَ قام ممکنه نه ده
قام منظم کړه او معيار دَ خپل نظام پوره کړه





فخر افغان نه یم پیغام دَ آزادی راوړے
په دواړو لاسو دا پیغام په احترام پورته کړه
د جهالت الزام پتا باندے پځائے لګیږی
دَ خپل تعلیم انتظام اوکړه دا الزام پورته کړه
د خپلې ژبے ترقی دِ هم چه هیره نشی
دَ انګریزی پشان معیار دَخپل کلام پورته کړه
ترکه دماغ دے ستا دَ قام سنځرے زره اوکړه
که ترقی دِ وی مقصد دَ دے مقام پورته کړه
ته دَخالد بابا اولادیے شجاعت او بنا یه
دَ مظلومانو په امداد کښ خپل صمصام پورته کړه
په بنیاد موچه احسان دین دَ اسلام کړیدے
په بنه عمل سره ته هم دین دَ اسلام پورته کړو
دَ الف جان نصیحت بیا وا وره عمل پرے اوکړه
پښتونه پورته شه قامونو کښ خپل قام پورته کړه



# ننګیالی زلمي

خودرکې مایتعلم کاکاخیله

په وطن کښې شورا و شر دے دَ زلمو
تیار شوے لوے لښکر دے دَ زلمو

دا سے جنګ دَ آزادۍ ته خوشحالیږي
ته به وائې چه اختر دے دَ زلمو

اتفاق، همت او صبر یې وسله ده
او آواز الله اکبر دے دَ زلمو

دَ جنګ فتح به آخر دَ دوی په نوم وي
سامان وار ه برابر دے دَ زلمو

په همت باندے زلمے په ته بیر پوخ دے
یو بو ډا مخکښې افسر دے دَ زلمو!

---

# اتفاق

خورخا دمه صاحبه

خدایا کله به په ملک باندې بهار شي
چه پکښ د ابلبلان ګډ په چغار شي
دا د جهل شپه به کله شي پرې تیره
چه ښکاره پرې دَ تهذیب ښکلې سحار شي
که یوځل دَ قربانۍ یاران پرې اوشو
زر تا زه به پرې ذملک مراوې ګلزار شي
که یوځل دَ اتفاق باد پرې راواوت
غمازان به دَخزان پاڼې ګډ ا ر شي
که پښتون په اتفاق جنګ ته تیار شو
داغیار ونه به زر دا ملک اوزګار شي
که پښتون لکه دغر پرې راښکاره شو
غمازان به لکه سوږي په دفتار شي



که نفاق له قومه لاړ شي اتفاق شي
آزادي به یې په پښتونخوا کښې راګډ ارشي
آزادي به شي له خوبه را بیداره
که پښتون دَ غفلت خوب نه رابیدار شي

---

"پښتون"

اکتوبر سنه ۱۹۳۱ء

# ښځه!

خور نگینه صاحبه

پخپل لاس باندې ښځه ! پیرن اوکړه
بائیکاټ خورې ! دَ نوی فیشن اوکړه
دَ وطن جولابه کیدهٔ باندې ورېشي
دَ خامتانه خپله پاکه لمن اوکړه
ترقی پخپلو متو باندې کیږ ی
تو لعنت په رخت اسباب دَ دښمن اوکړه
شاه زلمی به تو یوی پرې خپلې وینې
ته ښځې باندې خدمت دَ وطن اوکړه
دَ خامتاد اغوستو په بدله کښې
خورې سیل دَ آزادۍ دَ گُلشن اوکړه
ستا په یو گذار به ښته ښته پریوزی
دَ ښځې دَ توپې ډزې په لمن اوکړه





په صبا صبا ګیڼ عُمر پتا تیر شو
که خدمت دَ قام کوے پاسه مِق اوکړه
توره خاوره دَ لحد به پرے ګُلزار شی
ګټینې له دَ خامتا نه کفن اوکړه





# ننګیالی ته

نظم محمد غمګین

اے د خیبر د لوړو غرونو ننګیالی بچیه!
اے د نیکه ناموس ګټو تنکیا توریالی بچیه!
پښتون دے او کے په میدان کښ د عمل د تورې
دے په پښتون پسے لا لانده د ایمان تورے
ستا خو عادت دے د فرعون لوړ ماڼې نړول
په ظلم جوړې د فلک بوسه آبادی نړول
پرک په میدان د خپل نیکه د تورے بیا او ښایه
بیا هسک نشان په ټول عالم د پښتو نخوا او ښایه
ستا په ژوندون کښ زر تر زره شو د نیا بدله
ورک م ژوندون شو ورکه نه شوه دنیا بدله
تا به خپل خپل خپل خود غرضه والئ ران ورکول
تا به مغروره فرعونان او دښمنان ورکول





پښتون دَ غير دَ غلامۍ نه مُبرّا کړه کنه
ته دَ پښتون دَ آزادۍ څه ابتدا کړه کنه
په هر قدم کښې هرے سختې ته مُسکے ورځه!
دَ پښتو ننګه! ذره شه زر ټوټے لوټے ورځه

---

# د وطن سپاهي

محمد عمر سیماب شنوری

اے محبوبه جنګ له ځمه مه ژاړه بیا پسے
د هغه ژړا د کچه ځاځی نن په خندا ما پسے
ځمه چه چیغله تورې کړم وطن آزاد زه!
ځان کړمه شهید، وطن په وینو کړم آزاد زه
یمه تور یالے په کور کښ نه کړمه فریاد زه
ځکه م که وطن شی خفه نه یم زه بیا پسے
اے محبوبه جنګ له ځمه مه ژاړه بیا پسے
مه کوره په ناز ماته اے یاره چه ایسار نشم
بیا په دام د زلفو کښ د ستا زه ګرفتار نشم
ستا بوسه زه واخلمه او جنګ ته په تلوار نشم
زړه م چرته وانه ړی دے ستا د ناز ادا پسے
اے محبوبه جنګ له ځمه مه ژاړه بیا پسے



یاد م هغه وخت دے چه به ومه بیقرار زه
که په ژړا وم هم په کورا و هم په لاد زه
ستا دَ پاره نه ومه په سر باندے بیدار زه
اُس یم دَ وطن که لیونے وم زه بیتا پسے
اے محبوبه جنګ له ځمه زاړه پښا پسے

شمه که زه مړ نوته ما پسے ژړا مکړه
زه یم توریالے دَ تخته وم ته سودا مکړه
شوم که وطن غلام نوته ژوند دَ دُنیا مکړه
اورم چه راځی به آشنا تل په باوفا پسے
اے محبوبه جنګ له ځمه زاړه پښا پسے

سوال کوه اے یاره چه قربان شم په وطن باندے
داغ دَ وینز لوت دے چه راشی په ملن باندے

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

خیر که دَ وطن وی نو ورځم زه په بلا پسے
اے محبوبه جنګ له ځمه زاړه پښا پسے
اورم هر طرف دَ انقلاب دی داز وکونه اُس
دام دی هر ولی چه کړی مانه آوازونه اُس





ځکه اے محبُوبه اخلم ستانه رخصتونه اُس

تلے دے ورځکه ژ سیلاب آب خوشنوا پیسے

اے محبُوبه جنګ له ځکه مه ژړا پره پما پسے

---





# غزل

صاحبزاده فیضی

تا په کرالیوانِ م چه لاسونه کیښو
ما پرهرونو کښې ګلونه کیښو

دَغم په شپه خه په خوار واوده شوم
سرته م واره ستا غمونه کیښو

دَ منزلونو زړونه اودر زیده
تا چه په لاره قدمونه کیښو

ما چه ګلونو ته جولۍ اونیوه
تا په سینه زاله داغونه کیښو

ساقي که خوښه دِ وي نو ربه نخښنم
مُلام مخکښې قرآنونه کیښو

بنه شو زما دَ بدنامۍ داغونه
ښکلو په زنه ترے خالونه کیښو

دَ ښ قافلے دِ بے خطره درو مي
مونږه په لارو مشالونه کیښو





# پښتون ته

حُکیمه آپریدۍ

خوږه پښتونه ته شاهین يې ولې ځان هیره وې
مرګ ترینه ښه دے چه سبق د کرکسی زده کوے
ته رهنما وے دَ هر قوم اُس دَ بل پل لټوے
ولې پښتونه نن ځان پور ے اغیار خندہ وے؟
نن دِ رپیږی ولې شمع دَ خودی پښتونه
په څه دِ پریښود زورِ عمل دَ بُت شکنی پښتونه
تُوره دِ زنګ شوه هغه سپینه ابدا لی پښتونه
چه غورزیده به دَ باطل ترینه جبی پښتونه
نن دِ پښتونه ولې متوکښې طاقت نشته دے
دَ قوم پښتون يې ځکه نن دِ رکښې جرأت نشته دے
ستا په کوکل کښې ولې نُور دَ صداقت نشته دے
ځان دِ کړو هیر زړه کښې دِ خیال دَ تیر حشمت نشته دے





ستا دَ فرس تیز و تُند کام ته دا جهان هیڅ نه دے
ستا ارادو ته اوچت والے دَ آسمان هیڅ نه دے
ستا هر ماشوم ته دَ رستم پشانے ځوان هیڅ نه دے
ستا تُند نظر و ته برېښنا، برق دَ آسمان هیڅ نه دے
دَ شجاعت آواز دِ خور بیا په جهان کړه یو ځل
حَیدَرَه! خلقو ته وریاد بیا خوشحالخان کړه یو ځل

# دا سپيره وطن زمادے

فضل حق شيدا

پہ ١٩٣٠ء کښې يوه طرحه " دا سپيره وطن دَچا دے؟" دَ سرحد لا ندے ايخې شوے وه ۔ شيدا صاحب دَ هغې په جواب کښې دا نظم ليکلے وُ ؛

—— ( ★★★ ) ——

دا غلام او خس خزلے دا سپيره وطن زمادے
دا چه تندر دے وهلے دا ايرے وطن زمادے

اُو چې ځانګې بې کلونو پانې زيرے په بناخو نو
چه برباد کړو خزانونو رونو دا ګلشن زمادے

دَ خزان پرے تل ډيرے وی دَ صرصر مدام پيرے وی
او چې ځانګې يې سپيرے دی دغه اُوچ چمن زمادے

نه خشاک پکښې يو تل وی هره وُنه يې شنډه تل وی
دا چه اور پکښې تل بل وی دا تول سوبن زمادے





دا په سپړ چه حلالیږی دا چه دا رته تیاریږی
دا چه هسې عذابیږی دا بې واکه تن زما دے

په لالائې ایښے رنګ دے دَ غنچے زړه ترینه تنګ دے
دا چه تول په وینو رنګ دے دا تګ سور کفن زما دے

چه لینده اخلی په لاس دَ عشق اولی چپ وراس دے
چه کړی ظلم بے وسواسه دا سنګدل دښمن زما دے

څوک یې نیسی په انبور څوک یې سیزی په تنور
وینے څاڅی له ناسور دا زخمی بدن زما دے

چه کلی پرے تل وریږی او سیلاب پرے تل بهیږی
کاه په تندلچه سوزیږی دا ویجاړ مسکن زما دے

دا سوړ بوئ چه ترینه ځینه څوک تږدې چه نه ورځینه
دا مکروه بوئ چه کوینه دا وجود چمن زما دے

کمارې نه ترتیت دَ بنګال نه ترپربت !!
چه پرے غیر کړی حکومت دغه تول وطن زما دے

بلبلانچه چغوینه کوکوشتکے ژړ وینه!
دا چه زړه قطرے کوینه دا شیدا سخن زما دے





# وطن

عبدالغفران بیکس

اول دَ شمعې دَ الفت په پتنګانو سلام
بیا دَ وطن دَ باغیچو په بلبلانو سلام
او بیا زمایه نزد ولړو محبانو سلام
دَ وطن جنګ دے اُس ورځم درنه رخصتیږمه
دَ سرپه دا فچه جوړه ونګے دَ قسمت یمه
کشش دَ ګلو دَ چمن زما لمن نیولے
دَ مینے غیرت اته خوره مُود وطن نیولے
خوره جولۍ راته وزموده دَ چمن نیولے

خوراځۍ غوږ وکیږ جلی دَ مظلومانو زما
ناتارکړ وکړېږ په تازه باغ باندے زاغانو زما





زه یم پښتون دَ وطن مړ که زما مو ړه روڼو
دَ غیر دَ لاسه دغه مور یم کړوکور ده روڼو
زما غیرت له دا خبره دَ پیغور ده روڼو

دا احساسات دَ جُدائی دا اندیښنې دَ صبا
واړه په لاړ کښې دَ عمل دی کړنګونه زما

زین دَ توکل یم اُس ایښوی دے په اِس دَ کل
دَ تیغ په زور به دغه سوال زه دَ قسمت کړم حل
دَ اندیښنو اُس کیوتے نشم روڼو به ول

ورله ورځم رو ښو رخصت دَ کړه وایئ مه زه
ځار یم بولی دَ مظلوم نه ایسار یږمه زه

اوګوره هغه دے اُفق په وینو تر وینمه
چه وُ زما دَ غیر په لاس هغه خنجر وینمه
زه لاړ وندیم چه په سترګو دا منظر وینمه

پریږ ده غلول دَ ماضی یاده غم دَ تن دَ پکار
کفن په سر خنجر په لاس حرام که شمه ایسار

دَ وخت په ژبه دا آواز کړ راشه ننګ اوکته
باطل دَ حق سره کړی جنګ راشه دا جنګ اوکته





ته د ایمان په تیغ د دوی توپ او تفنګ وګڼه
دغه آذر ته دِ خپل ذوق لکه خلیل اوښایه
دے اهرمن ته دِ جلال د خپل جلیل اوښایه

---

"عدل" نومبر ۱۹۴۸ء

# د خیبر سره خبرې

اجمل خټک

ستا په سر باندې خیبره!
یو جونګړه زما کور دے!
ته زما په یمه کښې وې
زه دا ستا په اوږو سوړے

ستا لحظه لحظه تیریږی
د قدرت په تماشو کښې
توله ورځ د غره په سیرو
شپه د ستورو پلوشو کښې
ستا سکڼې ماښام رنګین شی
د شفق په لاله زار
سپین سحر دې د بادونو
په وږمو شی نوې بهار
په لمنو کښې دې غځنې
د قدرت د رنګینو دی
په جولئ کښې دې تاجونه
ریزمریز د زمانو دی
د ښیګڼې پرده کښې پټه
د سرو وینو آئینه ئې
په دے چپه چپیائی کښې
د ژوند ونو افسانه ئې





کهٔ م ژوند یوهٔ لحظه وے
خو چه ښسو کښې دِ نسکور وے
ستا په سر بانده خیبره
یو جونګړه زما کور وے

دَ آسمان دَ ستورو لارے
دهٔ دَ ستا دَ پاسه لاره
بوډۍ اړوی تالونه
ستا دَ غر له دستاره
تل دَ ستورو دَ دُنیانه
نُور په تابانده وریږی
دَ سپوږمۍ پاکے شُغلے ئے
په لمنه کښې راتویږی
نه دے شور ته دَ وږمو
هسے ځان سره مستیږی
هلته پرکَشی په آسمان کښې
دلته ته ورا وځلیږے
سپرلی دے کړے ښکتا غیږے
دَ قدرت د ننداره ونه
ژمے سپین پتا ابنار کړی
دَ جنت، دَ منادونه

اے پما له هرچا خوږه
له تا ځار م پلار و مور وے
ستا په سر بانده خیبره
یو جونګړه زما کور وے

تش دَ کانو غر خو نهٔ ئے
دَ غیرت دَ شجاعت ئے





دَ ننګ مېنځ قدرت وهلې — دَ پښتون په قومیت یې
ستا دَ سورې لاندې اوسي — پښتانه لوې لوې خېلونه
ننګ دَ نړ پښتو کالې دې — دَ دوی کسب دَ جنګونه
هغه تورې تر یالې دي — چه قضانه غاړه ورکي
په ژوندوني په شانه کړي — چه میدان ته یوځل ورځي
دغه شین زمري ځامن دي — په سینه دې لوبه وُ لي
خدایګوته دَ دوی پیدا شوي — دوی دَ ستادي نازه وُ لي

چه جور کړے دوی په مینه
نن دَ ستا ننګ وتګور دے
ستا په سر باندے خیبره
یو جونګړه نماکور وے

که کشمیر کښې لاتو کیږي — ښې میوے نازک ګلونه
دلته تاکښې پیدا کیږي — دَ غیرت نه ډک مرونه
دلته حسن ونزاکت دے — دلته ننګ وجراتونه
که هغه جنت نښان دے — ستا نه ځار شه جنتونه
دَ پښتون که ناموس نخښے — په تندے کښې ستا ځلیږي
ټینګ په زور وزرختونه — له هیبته اولړزیږي





ستاپه گرد خره فضا کښې دَبد بے دی دَ لښکرو
ښناسته دی دَ جمد دو حملے دی دَ خنجرو

په معنیٰ کښې جامِ جم
زما زړه کښې درته ژړوے
ستا په ترو کښې خیبره
یو جونګړه زما کوروے

کله هسته ستاپه سر ناست کله دلته دِ په ښنو کښې
کله ستا په غم کښې پروبرګي کله ډُوب خیلو خولو کښې
دا سپرده دِ راته یَو یَو دَ غبیل خُیګه زخمونه
په پیرو چه دِ خوړلی په سینه دی ګذارونه
چرته سنځ بلے تا کښې ما په رودو را او بنکے
چرته ښتی دِ لک شوی په سینه ما را ایستے
هلته ژوبل په نیزه یُ دلته شل در کښې تومینې
خپل زکونه م تسمے کړے ستا زخمونه م ګنډے

ستا دَ خون ځیګره دَ لاسه
بل زما په ځیګره اور دے
ستا په ترو کښې خیبره





یو جونګړه زماکور دے

ستا په سترګوم کښلے
دغه لارے دے میدان ته

دَماضی په آئینه کښ
دَحملو هر یو طوفان ته

دَ درے له هغه کیږه
دَمیدان تر هغه سره

سپین پګونه لوګے ستونی
دَ یو سر نه تر بل سره

کونږے تورے نه اردریږی
بره غشی را وریږی

شور دے چغے دی نعرے دی
سیلاب ځی و رځکښ کیږی

دَ درے مرو له کیله
دا میدان آوړی په بله

مزکه څه په وینو سره شوه
چه فضا یے او لړله

آوریدے م درن دَ تود دے
چه ستا خپه هر لور دے

ستا په سر باندے خیبره
یو جونګړه زماکور دے

په تندی کښ دِ ځلیږی
دَماضی هغه نقشونه

چه آریا وُ تیر دلو
ستا په خوا کښ کنه کونه

ستا په ریګ کښ دا دی دادی
دَ یونان دَسور ویلونه

ګوره دا پراته هسے دی
دَمحمود دَ فوځ هډونه





اُف، اُف، ای دی په دَ ترېه — دَ تغلق دَ ویښو دارے
راشه دا دی دَ خلجیانو — نخښې پاتې دی په لارے
دا پړ اته په تاکردونه — دَ مغلو دَ سورو دی!
ابدالیانو دی پرے ایښی — خپل نومونه په دردونو!

ته هم تاریخ تاریخ یې
خو زما لیمو کښې زور وے
ستا په ترو کښې خیبره
یو جونګړه زما کور وے





# چې په مینه دَ وطن مړشي سردار دې

هلالي

چه خیر غواړي دَ مِلّت هغه له دار دے
او دَ دار دَ سر دَ پاسه بیا سنگسار دے
دَ وطن مینه چه خوک لري په زړه کښې
دَ هغه دَ بسترے لاندے انگار دے
پوره ته کړے چه هرچا دَ حق آواز دے
دَ باطل میش هغه سره بیکار دے
نوحؑ نبي چه غږ او چت دَ آزادۍ کړه
ورنه ځکه مخالف هر نا بکار دے
ابراهیمؑ چه آزادي کړله اختیاره
نمرود ځکه غوړز وے په انکار دے
چه مړشي دَ آزادۍ نښه کړه پوره ته
دَ فرعون دَ لښکر ځکه دُښمن دار دے





چه اعلان دَ آزادۍ زکریاؔ اوکړو
په آره یې دوه ټوټې کړه سزاوار دے

چه عیسیٰؑ دَ آزادۍ نښان اوچت کړو
یهودیانو دے اُس دار ورله پکار دے

محمّد رسول الله دَ خدائے محبُوب
چه په وارو مرسلانو کښې سردار دے

چه بیرغ دَ آزادۍ هغه بلند کړو
په غضب ورته هر یو لعین مردار دے

دَ یزید نه آزادۍ حسینؑ غوښتله
دَ بال بچ سره شهید شه څه اسرار دے

آزادي غوښتل دا کار دے دَ نبیانو
آزادي یو لوئے نعمت دَ کردګار دے

چه شي مړ په غلامۍ کښې نو هغه دوزخي
چه په مینه دَ وطن مړشي سردار دے

غدّاران دَ وطن تل قوم فروشي کړي
دَ تپوس تل دَ مردارو سره کار دے

نادرشاه غازي چه خپل وطن آزاد کړو





په تارېخ کښې پښتون څکه نامدار دے

که ژوندون دَ عزت غواړې ځان آزاد کړه

ملالۍ وائي عزت که دې پکار دے

---

"وطن" مارچ ۱۹۳۷ء





# ځلمو اغستے همیشه ده آزادی دَ وطن

ارباب عبدالغفور خان خیل

چه اوچت شوے په هر وخت کښ دے هادی دَ وطن
ورله په غیرت دے ورغلے فسادی دَ وطن
په اوبه خور دَ وینو کیږی آبادی دَ وطن
ځلمو اغستے همیشه ده آزادی دَ وطن

پښتون به هغه ورځ لیلی دَ آزادۍ او مومی
چه هر ځلے په قربانئ کښ شی عادی دَ وطن

موږ له ځوانان مردِ میدان سر په تلی دی پکار
په سپو کمارو کښ هرګز نیشته بنیادی دَ وطن

اوږی بربنډ شو پخپل ملک کښ دَ بال بچ سره
اغیار لوټ کړیدی وختی سره او چاندی دَ وطن

بالیشی مال زموږ دَ کور کسب هنر کړو تباه
خاقو دَ رب په خاطر اغوندی کهادی دَ وطن





اے حلمو ویخ شئ قوم ژ ونډ په اتفاق سره کړې
چه غدّاران نه کوی وړاندې بربادی دَ وطن

چه غلام قوم دے په نعمت دَ آزادی نه وی بناد
خبردار چپ نه شئ، وتل کړه منادی دَ وطن

غلامی پاتے دَ قومونو دَ سیالئ نه کړیو
خلیلَ! پاسه په سرواخله آزادی دَ وطن

---

" وطن " مارچ ۱۹۳۷ء





# دُعا

نصراللہ خان نصر

خاوندہ تل آباد لرے وطن دَ پښتنو
آزاد دِ وی کہ خیرونہ کړدن دَ پښتنو

دَ زاغ او دَ زغن نہ دِ مدام وی پہ آمان
سرسبز او شاداب دِ وی گلشن دَ پښتنو

بدخواہان ئے خدایا تہ کړے پہ عالم کښ خوار و زار
تباہ کړے پخپل قهر تہ دښمن دَ پښتنو

دَ لاسہ دَ خزان ئے پړ رنګا رنګ شوی دی شنہ دے
اُس را ولے سپرلے تہ پہ گلشن دَ پښتنو

پښتون کښ شجاعت دے بزدلی نہ پیژنی
پہ جنګ کښ شین مزرے وی هر یو تن دَ پښتنو

تیغ وی او کہ غشے کہ نیزہ وی کہ یا تفنګ
اثر دِ هیڅ او نکړی پہ جوشن دَ پښتنو





خدمت کښ دَ اسلام ئې تل دوٗ کړیدیٰ سروٗنه
دَ شرع نه خلاف نه دے زیستن دَ پښتنو
چه مرګ دَ شهادت نه خوشحالیږی داوګړی.
داځکهٔ نه دے خوښ غسل وکفن دَ پښتنو
زخمونه ئې خندیږی ګُذار و نوتهٔ دَ تیغ
په کټ پوزی خوښ نه وی زنکدن دَ پښتنو
دَ نصر دا دعا ده همیشه ستا په درګاه کښ
محتاجه چا نه مکړے مرد وزن دَ پښتنو





# زلے غازیٔ

غازی

دُښمن یم له ازله دَ فلک ذدے چکر
تورزن یمه دَځایه بهادر شیر ببر
دَچا دَ سترګو تور یمه زیړګل دَصنوبر
خوښیدے خوابږ ۷ ر وښه تول پما ورکوی سر
هرڅه که پیښیږی خوسپالیٔ دَ وطن یم
زه یمه سردار دَ کور محبت دَ انجمن!
غم او خوشحالی کښې یوشریک الله دَ تن
زه لکه بلبل په شانګو ګرځم دَ چمن
زه سمسور ګلونه بوټیه نمه دَ وطن
ټونو ته یم شاګرد چه سپالیٔ دَ وطن یم
ماله رخصت راکړه بابا جی ځمه میدان ته
اُس کوُم غیرت په وطن کوره زماشان ته





تہ کوہ دُعا سحر ما بنام رب المنان تہ
تُورہ ہم اُس کورہ پہ چپا وُنحۂ میدان تہ
غُنچے بہ دَ نصرت را وُرِم سپائی دَ وطن یم

ځ باندے سُرخی دَ غیرت خوند کوؤ دَ زلو!
دَ سرو وینو باران چہ را وریږی بہ شیبو
چہ پیغلے جنکی یے نہ مریزی پہ کتو
بیا بہ خوک نکریزے نکوی پلاس وینو
میدان کښ بہ کہ یرم چہ سپائی دَ وطن یم

مات بہ ہم وی سر پہ کُنڈ ار ونو دَ خنجر
ښخ بہ ہم پہ زړہ کښ وے سنان لکہ نشتر
کولی بہ ہم وریږی پہ سر باندے دَرادر
پہ وینو کښ بہ سُور دکہ لالہ یم سراسر
ماتے بہ او نکړم چہ سپائی دَ وطن یم

وے خوږے مورے د وارہ سترکے دِ نمکے دی؟
وے دِ خټلے پہ زړکی باندے تنڑاکے دی؟
وے دَ محلت ار تینے تا سرہ غمنا کے دی؟
هیڅ خطر او نکړے چہ سپائی دَ وطن یم





لاس یې د توپک او د سنګین د غاړې هار وې
جوړ یې میدان د جهاد و لو ئې مزار وې
مخلوق به دِ سلام کړه چه سپاهي یې د وطن
ښځې ته ۱- وې چپ ولاړه یې زما د باغ غنده لې؟
ولې نن د ډیره غمې یا او ژنګیدلې؟
ولې د بنګړو نه دِ خالي شو منګولې؟
ولې د ارمان مالۍ دِ باد او نړولې؟
ولې خبر نه یې چه سپاهي د وطن یم
نه که شپه او ورځ زما په غم کښ بیقراره یې
یا لکه غوټۍ د باغ د پاسه بې ماليارہ یې
یا یوا زې مې ناسته خورا ورېل لکه بیماره یې
یالکه تیکه د باز په پنجه کښ ایساره یې
سر د سیالي پور ته کړه سپاهي د وطن یم
ګریږې ستا د لاس کمبې لما او رژیدلې
غوټۍ که ستا د باغ نه په تلوارې پریوتلې
په سرکه دِ سیلۍ د نامراد و ته والوتې
خیر دې که یو اځې شوې اوکښې پاتنو تې



ځان ړوډ دلاسه کړه چه سپائ دَ وطن یم

ستا غونډې ناویانې نن دَغمه شوې کړې
نن یې غیرت خوشې دی دلبر وهی نعر
څنګه به تیریږی دَ هجران دړانه شپې
ستوری دَ آسمان به دَ دوی وکړی ننداره

ځاریږه یم دَ خیاله چه سپائ دَ وطن یم

نن دَ زړه دَ اخلاصه یاره او غواړه دُعا
نیغه عرش ته ځیجی دَ غمجن زړګی صدا
فتح او نصرت به نا کهانه شی پیدا
جنډے دَ خوشحالی به شی او چتې به هرخوا

ستا غیرت له به راشم چه سپائ دَ وطن یم

ایستے پینے رابشی بنا غلی شاه زلمی
کالی به یې تنقر بانډے ځنیږی بهادری
خاوره دَ وطن به یې قدمونه ښکلوی
اوُړے بوټی کالی ننداره به یې کوی

پیغلے به یم ساری چه سپائ دَ وطن یم





زمانه دَ قدم نه هویدا وی هسے شان !

هر سړے به والی چه خپل ځان کړم قربان
په سر باندے کلونه وریږی م باران
والی به وطن چه یم لایق دَ دغه ځوان
مئین په آزادی یم چه سپالیٔ دَ وطن یم

لاړم خوږے مورے اُس کوم درته سلام !
ماخپله دُعاکښ یاده وه سحر ماښام !
زه به دَ وطن دَ پاره اوکړمه نام
تابه په سپالی باندے اوچته کړم دَ بام
ستا دَ زړګی سر یم چه سپالیٔ دَ وطن یم

واؤ ری زمار ورور دَ وطن! زه رخصتیږم
زه یم توریالے پخپل وطن به قربانیږم
هر کمزوری اوکی او غریب نه به ځاریږم
تندر به ناساپه په غلیم باندے غورزیږم

اجازت په مینه راکړی چه سپالیٔ دَ وطن یم





اوکورې دا سترګې دَ مزرې چه اُس ځلیږی

اوکورې دا ژبه چه وطن وطن وییږی

اوکورې دا شپې چه دَجوشه نه رپیږی

توره زما تیکې کښې هرګز نه قراریږی

زه په تلوار ځمه چه سپاهیٔ دَ وطن یم





# زړلمو کار!

حاجي نصرالله خان دَ سربند

آزادي دَ خپل وطن کار دَ زلمو دے
کرځوي ترخ کښې کفن کار دَ زلمو دے

آزادي پسے له سرو ماله تیر دي!
تیره وي د بڅو ځن کار دَ زلمو دے

ښکلي لار دَ آزادۍ ته عالم بوځي!
غوره وي ور ته لمن کار دَ زلمو دے

چه خار دار اوو ربجن پتي ته فخ کړي
زر ترے جوړ کاندي ګلشن کار دَ زلمو دے

پریکوي دَ غلامۍ دَ بوټي جرړے
آبادي دَ خپل وطن کار دَ زلمو دے

ډک له زهرو انعام ناخلي دَ پیر ځنو
نه غلیږي په د ښمن کار دَ زلمو دے





دَ اسلام په قوم په غم کښې دَ مُسلم هم
چه قربان کړی جان وتن کار دَ زلمو دے
چه کوم دَ آزادی پسے تلاش کړی
په دریاب شی غوطه زن کار دَ زلمو دے
نصرالله دوست او دشمن ته په یو رنګ
تل ساتل شیرین دهن کار دَ زلمو دے

---





# زما خوږه وطنه!

یوسف اورکزے

دا زړګے به لتاڅار کړم دا ځیګر به لتاڅار کړم
که حاجت شولو وطنه! نو دا سر به لتاڅار کړم

ستا دَ هر یو عوږنړی نه، خدایږ د جو رے تهتر ے کړم
ستا په خاورو به ځان خاورے، په ایره به دا ایرے کړم

ستا په هره یو ذره به دا خپل ځان ذرے ذرے کړم
ستا دَ هر یو ے قطرے نه به قربان دَ زړه قطرے کړم

دَ قطرے نه دِ قربان سم، بحر و بر به لتاڅار کړم
که حاجت شولو وطنه نو دا سر به لتاڅار کړم

عظمتونه دَ دُنیا به، پښو کښې اوغورزوم تا نه
غیرتونه عزتونه، به یو ګړم ستا حیا نه





همتونه حوصلے به، سپيلنی کړم ستا بقا نه
زه پښتون يمه دا وايم دا به او ښايمه، ستا نه

ځورم قسم دَ خپلے تورے هر جوهر به ستا ځار کړم
که حاجت شولو وطنه! تو دا سر به ستا ځار کړم





# سوګند

ایوب صابر

نه پروا له لرم دَ دار نه د دارا زه
ځکه ځان ګڼمه د ومره سربالا زه
په سجدو نازیږم نه په مصلیٰ زه
نه زاهد یم، نه مفتي یم، نه ملا زه
چه تسبې مې وی پلاس او زړه مې غل وی
نه مې هغه زده او نه کومه دا زه
ګنهګار یم سر به څه له چاته وینځم
ربنتیا وایم کوے نه شمه ریا زه
دَ تقویٰ لافې عبث دی خو دا وایم
چه څنګه سر به کړم وطن باندې فدا زه
که بد هم یم دَ وطن په مینه مست یم
ګرځومه بنه نیره توره سرملا زه





خدائے دِ اوکړی چه هغه ساعت هم راشی

چه دَ قام دَ پاره اوکړمه غزا زه

زه سوګند خورمه که دا سے ساعت راغے

دَ وطن دَ غلیم وار به کړم خطا زه

دا سینه به خپله سَرهٔ کړمه په وینو

یو پرهار به هم اونه خورمه پشا زه





# بابا عبدالرّحمان

فضل ربي معدن

څه شوې سوې سرېکې څه خوابزه دردونه
څه ړنې ړنې اوښکې څه سارې سارې آهونه
څه وچې وچې شونډې، وچې ژبې وچ حلقونه
څه دَرو رو بنارې او څه زبيرګې، څه فريادونه
څه سترې خولې په چغو څه دېنې شپې فغان
دا دواړه دِ راغونډ کړل ترينه جوړ دِ کړو ديوان
څه ړنې مستې سپورې، او څه سترګې ژړې غونې
څه يو بل پسې ورلي، دَ درمنو زړونو خونې
څه ورځې شپې دَ هجر، څه بوګنې څه مرګونې
څه ورځې شپې دَ وصل، او څه شونې څه ناشونې
څه رنګ رنګ شوګيرې او څه نازونه دَ جانان
دا واړه دِ راغونډ کړل ترينه جوړ دِ کړو ديوان





یوخوا دَسپرلی شنه چمنونه، نَرۍ گلونه

بلخوا دَخزان دورې او سُوکړ سُوکړ باغونه

یوخوا نرۍ وګلو کښې، دَ نسیم نرۍ سازونه

بلخوا دَبلبلانو، دِک له سوزه آوازونه

یوخوا ته خوشحالی، بلخوا غمونه دَ جهان!

دا واړه دِ راغونډ کړل تر ینه جوړ دِ کړو دیوان

یوخوا ته پند او وعظ، دَحق گویو عالمانو

بلخوا پټو دل رازونه، دَ سالکو زاهدانو

یوخوا شعر و ادب دَ شاعرانو او ادیبانو

بلخوا دم دَ دلاسے دَمور پلار او اُستاذانو

یوخوا درس و تدریس، بلخوا رازونه دَرازدان

دا واړه دِ راغونډ کړل ترینه جوړ دِ کړو دیوان

دَحق عشق عاشق یې، عاشقانو ته رهبر

دَحق علم عالم یې، عالمانو کښې یو نمر

زاهد دَحق په زُهد، دَ زاهد وهم سفر

په ښکلی پند او وعظ کښې دِ رب ایښے اثر





شوے تیرے زمانے پہ تا تہ یئے هغسے ځوان
یئے ځوان به شه که یئے په نوم بابا عبدالرحمان





# جنګي سندره!

امير نواز جلیا

پروني خبرې پرېږده نن خبرې وايه
چه وطن پرې پورته کيږي هغه سندرې وايه
چه شپې ښيمې له درنګ له د وطن او د قام ننګ له
خپل نځوري ليرې جنګ له ميندې دا سې نرې وايه
چه ځي د وږي تراسمانه خوک خبر نه وي د ځانه
په ميدان کښې د جنګ جانانه ، درځه شپې لمرې وايه
په ميدان کښې چه د جنګ ځي ، لکه شير ياد نهنګ ځي
خپل شمشير په ويښو رنګ ځي ښکلې ډال به سرې وايه
چه د وينو سور سيلاب وي په دشمن يوم الحساب وي
بس يو شور د انقلاب وي ، د نز دې د لرې وايه





چه یو ځل تُورے پرقیږی، دَ کولو باران وریږی

ځیُ دشمن په بیرته کیږی دَ حملو دَ ویرے وایه

دَ دُنیا نقشه ده نوره په غلیم ده وریځه توره

جلتیا! قوم ته اُس په زوره د جنګي سندرې وایه

---





# پښتون یم

محمد غازی دَ غریب آباد سوات

پښتون یم همیشه یم په پښتو غیرت خوړلے دے
مور ماته په ادرو کښې دَ همت سبق ښودلے دے

پښتون یم مخکښې ځم او پښانه ځم په میدان کښې زه
تل یم په پښتو باندے خپل سرا و مال بایللے دے

پښتون یم هر ګُذار ته سینه نیسم لکه د ال زه
دَ غیر نه یم په دا سینه کښې هر ګُذار زغلے دے

پښتون یم دَ مزری غوندے به مرمه میړے نه یم
مزرے یم میړے هر چا خپلو پښو کښې لوغړولے دے

پښتون یم دَ سیلاب غوندے په لوړ ژور بهیږمه
غلیم مے هم په لوړه هم ژوره غورزولے دے

پښتون یم هسے تېز لکه طوفان منزل ته رسمه
په هر منزل کښې تل مے خپل دُشمن له ستړ نولے دے





پښتون یم چه انګریز م لرې کړ وَدخپل وطن نه نن
هرځائې خوشحالي ده چه خپل قوم م نن ګټلې دې

پښتون یم زه غازي هرپښتانه بانددې قربانیږه
داځکه چه م تې دَپښتنې مورې رودلې دې

---





# دَ پښتنو بادشاه شیر شاه سوری په یاد کښې

سعادت خان جګجل

دَ بهادر بادشاه پښتون شیرشاه ستائینه کوم
هم دَ زړے پښتو غیرت زور یادګیر نه کوم

نوم دَ شیرشاه به ترقیامته لکه نُور ځلیږی
ده دَ پښتو غیرت دیوال باندے ردےلیکلے دی

دَ پښتنو نخوانه دا دُنیا هرګټ ته اورسیدو
ده په دولت باندے ملت دَپاره پښے ایښے دی

ده دَ غرورا وتکبر په شملو لاړے توکړے
ده دَ قسم دَ پښتنو په لوئے غیرت خوړلے

دَ حق دَ پاره په تلی کښې ده خپل سر ایښے وو
هر یو پښتون له دَ شیرشاه دَ ننګ پګړه تړلے

پښتونه! ستړه زمانه دَ ننګ غیرت یاده کړه
بیا دَ کرنال او پانی پت هغه میدان جوړ کړه





ته دَ شیرشاه په هر قدم باندې قدم واخله
دَ لیونو ښورو پر تو پښتنو شان جوړ کړه
دَ دُشمن فوځ به دَ پښتون نه لرزیده مورچه کښ
په تیښته تلل به دَ دوی پښې چینګوړې نشوې
دَخیبر ځوکو تماشه دَ ننګیالو کوله
دوی دَ زمرو درې بل چاله ورکوړې نشوې
شیرشاه هر ځائې کښ دَکمزوری ملګرتیا کړیده
دهٔ دَمظلوم دَ پاره وُو دیر ظالمان وهلی
سوری به مخکښ دَ سپایانو نه مورچې له تللو
پښتنو میندو ورته ځکه وو زامن بخلی

# پښتون ته خطاب

علیمحمد ر

قومو نه شول اوچت په مخکښ تک کوی افغانه
ته هغه شان اوده يې بے خبره دَخپل ځانه!
هر قوم دے راخلاص شوے نن دَ غير غمازله جاله
ته هغه شان لاپروت يې په پنجره کښ نديې حيرانه
په ټوله ايشياء کښ هر طرف نارے سورے دی
لمبے دی چارچاپيره ستانه نديې پکښ پريشانه
نن رنګ دَ زمانے دے بدل شوے ځان بدل که
ترکومه به اوده يې شا به پاسه په تلوارہ
پخپلو کرمو وينو دا چمن دِ بيا خړوب که
خزان دَ دے وطن بدل بهار شي که نادانه
پيغام دَ آزادئ نه هر يو ځوان بوډا خبر که
مطلب با نديې پوهه که دَ دے نوی انقلابه





# خلقه اوچت شی

صاحبزاده محمد آدریس

هر کور کښ اور دے　　هر چم کښ شور دے

کار ټول د زور دے

دنیا کښ سخت شوه　　خلقه اوچت شی

ظلم و ستم دے　　توپے دی بم دے

ماتم دے غم دے

پوره په علت شی　　خلقه اوچت شی

عیش دے د شیطان　　خواری د انسان

دا دور دے بد شان

یزدان صفت شی　　خلقه اوچت شی

بیدا د کیږی　　مخلوق ژړیږی

مظلوم د پیږی!

فرد نه ملت شی　　خلقه اوچت شی





ژوندون شه ډیر ګران مرګ ډیر شه ارزان
الله نګهبان
بیدار بخت شی خلقه اوچت شی

اور راور ببږی هرڅوک ویریږی
کوری څه کیږی
راډیخ په وخت شی خلقه اوچت شی

نازک دے دا دور توردے لکه کور
اوکړی پرهنه غور
سم تول په نیت شی خلقه اوچت شی

خلقه تباه شوی ډیر بے نوا شوی
بے دست و پا شوی
ویخ د ساعت شی خلقه اوچت شی

بے آبرو شوی بے رنګ و بو شوی
ماته سبو شوی
د آسمان چهت شی خلقه اوچت شی

ناسوچه ژاړی خیر بل نه غواړی
ذلت چه راوړی



ننګ دَ اُمت شي خلقه اوچت شي
اور دے غلامي ګور دے غلامي
مرګ دے دوامي
ورک په عزت شي خلقه اوچت شي
وخت دَ عمل دے همت اول دے
همت کښ چل دے
لږ باهمت شي خلقه اوچت شي
دا درته وايم بيا درته وايم
چل درته بنايم
خلقه اوچت شي خلقه اوچت شي

---

۱۵۲
۵۴





# پښتو خطاب

عبدالرحیم مجذوب

زه پښتو پتا مېن یم ته لیلیٰ زه دِ مجنون یم!
ته پښتو یې زه پښتون یم، ته پښتو یې زه پښتو یم

زه په څاوُدو څاوُ دو لا سو!
زه په څاوُدو څاوُدو کو ښو!
سمُومه بَ منحُوسه دِ تا پوځې پوځې زُ ښې
هغه دم چه تورے ور یے ځ!
دَ خیبر به سر لیدے شي
پولی پولی دړگے دړگے
زه چه زړگے زړگے سترگے
دَ زړ کالو اوگور مه!
اسو یلی ور پسے کړمه دا کجل تیار و مه
دَ قلم به سلاي زه



تور دمه دِ تا برندے لیونی کجلے ستر گے
دهٔ ې ویے تاله مینے زهٔ دَ هر بنکلی مفتون یم
ته پښتو یے زهٔ پښتون یم ته پښتو یے زهٔ پښتون یم

---

دَ شفق سکر یے راوړ مه!!
تا په لاسو پښو یے کیږدم
کله راوړم کهکشان زهٔ په پیاسے یے لګو مه
ستا په تور تالا اور بل کښ
لکه نیکه دَ افشان زهٔ
له تا ناوے جوړومه!
ځله ستوری او ښکے
په ښپو باندے پیر مه
تور وشپو کښ دَ هجران زهٔ کله غم کښ دَ جانان زهٔ
ملغلرے دُوړومه!
خپلو سترګو له سیپیوُ!!
تاله منی جوړومه
شیخ دِ تا په دِ ول شیخ که زهٔ شوخ په شواخون یم





ته پښتو يې زه پښتون يم ته پښتو يې زه پښتون يم

---

دغه زمکې شاړې
دغه ورانې دا ويجاړې
دغه خوشې غرونه پښتونخوا چه ورته وائي
ته پښتو چه چرته اوسې
دا کعبه م دَ پښتو ده!
دا جنت دې بيا دَ پاره
ستا په در ستا په درشل کښې
ستا مئين کښې نه شي!
دا دَغيرو قدمونه تو يوم به چپلې وينې
زه قسم کوم شيرينې
پاکوم به له اغياره
دِ تادر کودر او لاره
زه اورنګ يم ازمائيلې زه بيدې هماتون يم
ته پښتو يې زه پښتون يم ته پښتو يې زه پښتون يم



# خوشحال باباته

دوست محمد خان کامل مومند

بابا خوشحال خټک! د پښتون د سترګو تورے
ته عقل د سپين ږيرو د زلمو د مټو زور يې
د قام او ملک نصيب يې علامت ئې د تهذيب د ځې
په ذهن د شاعر د فلسفي په فکر خور يې
هر څوک فکر ته حيرستا هم عمل د حمه ګير ستا
د هرے ډلے مشر او د هر محفل اخوړ يې
کتاب د عالم لاس کښ د سپائي په لاس کښ توره
ستيک د مزدور لاس کښ د دهقان په لاس کښ لور يې
په حمد او په نعتونو د ايمان د محفل شمع
په بنو خوږو غزلو د عاشق د زړه ټکور يې
د ژوند سارې دامرګ د څه خدائے تاره در کړے
په کور کښ غلے پروت په پښتونخوا کښ هر خوا شور يې





يوائې کامل نه دے چه د خوان د ريزه چين دے
مشغول چه خوک په شعر وی اهم ته د دره بيورې





# خطره

قلندر مومند

زه چه بیدار یم بادار ته خطره پېښه ده
سرم په دار دے خو سردار ته خطره پېښه ده

دَ سرو په کرېږ هم چه کار تر سره او نه رسی
دَ قهره سره ئیے والی سرکار ته خطره پېښه ده

نن ئیے بے زوره بے وزره ځارَوی له سره
هر زر پرست ته هر زردار ته خطره پېښه ده

چه کوڅے موږ دَ دے دَ گنج په سر څوکی ورکوی
نن دَ مُهرالو دغه مار ته خطره پېښه ده

ایسارَوی مُ چه قدم چه پرِتَکیه وه دَ چا
هغه غوندی هغه حصار ته خطره پېښه ده

دَ چاپه سرچه په نلچارو باندے چارے اوشوے
اُس له ناداره هغه دار ته خطره پېښه ده





زموږ په وینه دَ وطن ګلونه تول تازه شو

زموږ دَ لاسه هر یو خار ته خطره پیښه ده

تیرے ظلمونه تاتارۍ نه او تیرے تړهیږی

چه تهترے ځئے تاتار ته خطره پیښه ده

خو دیے ورے ورے خبرے لوے لوے ئے

چه قلندر نه کلان کار ته خطره پیښه ده

---





# زما د خوږ ابا وطن د اشنغر اولسه

عبدالاکبرخان اکبر



دَ آزادی دَ کاروان مخکښ دَ ناتے جرسه
اے چه انګریز د اوطن پرې بنود وهم ستا له تسه
اُس دِ په کورکلی وطن کښ وینم پرېے وسه
دَ غلامی طوق دِ په غاړه وینم یو په لسـه
په وینو سر و خپلو تاکر دَ آزادی کړے دے
سر دِ همیش له تے نیت دَ جدائی کړے دے

ما و ئیل پښتون به دَ سرحد په یو لړی او ترم
شو کے زنځیر به دَ ورورۍ کړی کړی او ترم
ه هغه دَ قامونو دَ دنیا کښ دَ عزت په مسنبر





دے عزیز قام له به دَ فخر زه پکړی او ترم
دَ غیر په شال به لاړے تو کړم دَ ذلت په جامه
ستر دَ تن له به زه لنګ خپله شړی وترم
دا اُمیدونه، مُرادونه مے ترسره نه شو
کم مے غمونه دَ هجران له دے ځیګره نه شو

---

دَ زهرو ډکو پیالو بانے مے قام اوغلیده
دَ غمازیانو په لمسون له دَننګ کمره اولویده
دا په خپل طمع دَ راحت دَ بل په دراو دریده
څوک چه دَ بل په اسره کښیناست دَ انصاف پېځمع
تاریخ ګواه دے دا قامونه درپه دَر نه شو
کم مے غمونه دَ هجران له دے ځیګره نه شو

---





# غافل روح ته

رضی الدین سیلاب

ما دے راوړے تاله بُشکلے پیغام دَصبا
او ده غافله روحه! واوره هنګام دَصبا

ما دے راوړے تاله دَصباؤن زیرے
وختونه تول بدل شو دَ مضمون زیرے

تیرے دَظلم لاړے دَبل قانون زیرے
ما دے راوړے تاله دَیوپښتون زیرے

غیرت او ننګ اوکړه پاسه ن جنګ اوکړه
بیا دِ په کرمه وینه یوځل غورزنګ اوکړه

وختونه تول بدل کړه دا زمانے بدلے
په نوی رنګ کښ ن بیا کړه افسانے بدلے

دا کنډ ولونه مات کړه دا میخانے بدلے
زړے نقشے کړه ورانے دا استانے بدلے





کړه دا دُنیا بدله نوې دُنیا جوړه کړه
نوې فضا جوړه کړه نوې خلا جوړه کړه

برخو په بیرته لار خپل روایات اوګوره
تاریخ کړه پاڼې پلټه خپل حکایات اوګوره

هغه دُنیا اوګوره آکائنات اوګوره
زما غافله د وحدت خپل مقامات اوګوره

ستا دَ غورزنګ له وجې دُنیا وه سر په لړزان
ستا دَ هیبت له وجې تل خوزیده په آسمان

په کُندو رندو خوارو ولې نظر نه کوې؟
وخت دَ ازمینت دے په تا ولې خطر نه کوې؟

قدم منزل ته واخله ولې سفر نه کوې؟
په لوړو لوړ و غرو نو ولې ګذر نه کوې؟

ستا دَ عظمت نښانې خیبر په سر کښې کرځي
دَ پښتونخوا قیصې لا په خپل ځیګر کښې کرځي

خزان زپلې صحرا نه ګلستان جوړ کړه
دَ خپل دښمن محل کښې هاے سوران جوړ کړه
وخت دَ غفلت دے تلے دَ ژوند سامان جوړ کړه





نو ے غیرت جوړکہ نو ے ایمان جوړکہ
شمع کړه ځان ته بلہ ترڅو ظُلمت کښ بہ ییٔ؟
پاسہ او دهٔ احساسہ ترڅو غفلت کښ بہ ییٔ؟

زما سپیځلی روحہ! تا ته سلام دے زما
له خوږ ځیګره وایم دغہ پیغام دے زما
ستا په یو ټک کښ دَ ژوند فقط ارام دے زما
دَ بیدارۍ خبر تا ته مُدام دے زما

ما دے راوړے تا له ښکلے پیغام دَصبا
او دهٔ غافله رُوحہ! واوره هنګام دَصبا

---





# دپښتونخوا سيمې ته

لعل زاده نګار شنوارۍ

اے دَ کږو وږو او دنګو غرونو سيمې!

اے دَ درو دروکږو وږو ناوو نو سيمې!

اے دَ هوجرو او دَ مورچو او دَ برجونو سيمې!

اے دَ جرګو دَ ملاتړ دَ ټټو پګو نو سيمې!

په تا کښې څومره درنا وے څومره عزت پاله شي

په تا کښې څومره سرېتوب څومره غيرت پاله شي

دَ سرېتوب او دَ حيا دِ پوره ورے نړے

دَ سخاوت او ميلمستيا دِ پوره ورے نړے

دَ ننګ، قول دَ رښتيا دِ پوره ورے نړے

دَ خورے تندے دِ خندا دِ پوره ورے نړے





پہ کومہ خولہ بہ شی لہ تا انسانیت کیلہ من
خہ بہ شی ستالہ پیرزو ئنے شرافت کیلہ من
نہ چا تہ بیتہ دَ سیالی نہ دِ سامراج منلے
نہ دِ جوغ دِ چا منلی نہ دِ ستاج منلے
دلتہ قانون لاس پہ نامہ دود رواج منلے
دلتہ چہ چا غوبنتہ باجونہ ھغہ باج منلے
پیدا کوے تیرہ شیرہ او ننکیالی میرنی
سینے دالونہ مِتے تورے بریالی میرنی
تا پہ خودکری خوشحال دَ چنگیزانو خودی
دَ سکندر غوندے سرتیزو فاتحانو خودی
تا پہ خودکری خوشحال د اورنگانو خودی
ستا بہ دکو تہ بیتیدے دَ فیرنگیانو خودی
میرمنے تل کوتہ پہ خولہ درتہ حیرانے تلی
خوک دِ چہ بنجہ تہ دا غلی خولے ورلنے تلی
ستا دَ ظلمونو زلمی اثرتہ اثرونہ شہ دی؟





ستا دَ زلمو زلمی نظر ته نظر ونه شه دی
ستا دَ زلمو ننګیالی یون ته ډګر ونه شه دی
ستا دَ زلمو زلمی ګُذار ته سپر ونه شه دی
اے دَ جنګونو ډیرو ډیرو غزا ګانو سیمے!
دَ کرور رانو خېګر ورو دَ حُوا نانو سیمے!
دَ خوشحال خان دَ ښکر تُورو ته دِ غر ونه دی غوږ
دَ اکبر خان خرپا دَ تُورو ته ناوونه دی غوږ
دَ میرویس خان دَ تُورے شرنګ ته کرنګونه دی غوږ
دَ احمد شاه دَ یون سیلاب ته میدانونه دی غوږ
بیا دِ زړو تورو له جوړ کړه نیا مونه نوی
زړو بابونو دَ تاریخ له عنوانونه نوی

---





# رقامینه

محمد احسان ظهیر د جم

زه رقام یم، قام زما، زه یې غلام یم
پښتنو کښې بند او چت لکه د بام یم
دغه ځکه چه لوی له پښتون قام یم
جم کښې او سمه زړه صاف لکه د جام یم
چه تر څو یمه ژوندے ستا به خدمت کړم
قامه تا نه شم فدا ستا په ننګ نام یم
هر یو څاڅکے مې د وینې نه تا ځار شه
غلیم کړم سبا به قطرے ورته سهام یم
خطر ولے له دښمن او کړم پښتونه؟
یمه توره حېله ډال او هم نیام یم





دښمن خوځ به رانه او نه کړي پښتونیم

د عدو دَ سترګو خس، ورته پښه دام یم

راحت څه کړمه دَ قام مینه کښې بوختیم

نه خبر یې له اغاز نه دَ انجام یم

اے پښتونه ! دَ خالد ؓ غوندے پښتون شه

ځکې ستا غم کښې په سرسام یم

---





# زلمو خښتي هميشه ده آزادی د وطن

بادشاه گل نیازی

(مرحوم)

د قوم خدمت ته دے راغلی هر هادی د وطن
چه قوم بیدار شی هله کیږی آبادی د وطن

که مونږ حکمت حرفت هنر ځان آشنا کړو دوبار
ملک نه به نه ځی بهر بیا سره او چاندی د وطن

قتل و داړه مونږ پښتنو ځان ته میراث اوکړه
ده بدنامی د پښتنو او بربادی د وطن

قیامت لا پریږده په ژوند لی پجنت کښ ارسی
چه کوم قومونه په خدمت کښ دی عادی د وطن

چه په نعمت د آزادی وی هر یو قوم سرفراز
د هغه قوم ده په رښتیا سره بنیادی د وطن

نیازی زلمی به قربانی له آزادی ځنی شی
زلمو خښتی همیشه ده آزادی د وطن

"وطن" مارچ سنه ۱۹۳۷ء







# دَ امېن مکتوب

م . ننګرهارے

په نامه دَ هغه خدائے چه ذوالجلال دے
هغه خدائے چه تل ترتله په یو حال دے

چه یې تاج دَ مشرق ورکړلو مغل ته
حکومت یې وسپاره دَ دوی منګل ته

چه کمند یې دَ مغل کړو کهکشان
چه یې ایل کړل ورته ستورې دَ آسمان

په اقبال او په طالع دَ اورنګ زیب
چه تاج وموندهٔ دَ ده له سره زیب

زهٔ له تانه کرم پښتنه اے ایمله!
چه په څهٔ باندے باغي شوے له مغله؟





دَ مغل دَ تورے شرنګ دِ وے هير شوې
دَ سورو زنمو غورزنګ دِ وے هير شوې
دَ مغلو دَ لښکرو له غُباره !!
شوله دغه اووه طبقے زمکه تياره
دا آسمان دَ مغلی عظمت ياد کاردے
توله عالم ئے له هيبته نا قرار دے
دغه نن چه دُنيا وارۀ پرے رنړا ده!
دَ مغلو دَ تيرو تُورو برېښنا ده!
مرګ او ژوند زمونږ دَ تورو بهانے دی
خير و شر هم دَ مغلو افسانے دی
تا شنے مه ژوبه په خنګ کښ دَ پيلانو
ځانته مه اړوه نظر دَ مغلانو
لکه خس هسے په مخ کښ دَ سيلاب
شے به ګډ به په سرګردانه يو ګرداب،
ته په کوم زور او قوت شوے مغروره؟





اے دَ نیل وجود خیر سره تر بُو ره !
دَ میرزی غوندے دِ وکړله وزر
دا وزر وننه به دِ غوځ کړم په خنجر
اے شبنمه! دَ ګُل پاڼے چرته کوره
دا مواجو دَ غوټمله نه دِ ځان ژغوره
مالبے مست کړے نو په ځان باندے ډاړه شوے
اے زمانه دَ غشی ښکاره اُس باندے شوے
پوکنه غوندے به پرق وچوی له ویرے
که درلاندے وت طوفان دَ مغل چیرے
دغه خیال چه په مغزو کښ در ته پیښ دے
ناخبره دَ نیرو نور و له بریښ دے
اے مجرمه! دَ سلطان ځینے باغی شوے
اخ! ساحله دَ طوفان ځینے باغی شوے
هیر دِ وے شو په نن پرون چنګیزه
دَ نورزن مغل دِ سینے توره ریز





اُس هم شته هغه با بَرَ هغه مغول
چه جوهر دَ تیغ به وُ دَ دوی مشکول
له خاطره دے بے هوشه هلاکو؟
دَ پښتون په مال وسر باندے تاکو
دَ اکبر دے میدان اُس هم په وینو سور دے
ابراهیم لودی دے پروت پکښ چور چور دے
اُس هم شته دے دَ مغل هغه انداز
لکه موم به دِ له اوره کرم کمه اعزاز؟
لاس اوپښے به دِ تول وتړم په زور
اے ایمله! درته کیږه بدمه اور؟
مال او ملک به دِ په سینه باندِ لاهو کړم
که مغل زلمی یو ځل در باندِ هو کړم
دَ مغل دَ سلطنت نظام کامل دے
لکه موج هسے بے نیازه له ساحل دے
اے کوترے دَ شاهین په تور اخته شوے





دا څمواجو ... په اوږه یوه تخته شوې
په جهان کښې دَ مغل لویه هستي ده
نن په برخه دَ مغل بالا دستي ده
په لکونو زلمي مغل تیار دي
اے ایملیه! له پیاده ډیر سوار دي
بدبختیو دَ اجل په پنجه ورکړې
خپلو بدو آرزوګانو درپه درکړې
دَ پښتو پښتون خبرے نورے پرېږده
دَ جنون جنون سندرے نورے پرېږده
دا طوفان دِ په وطن مه دروله
دا خزان دِ په چمن مه دروله
درنه غوږ م کړل رکونه دَ لرمون
ته لا اُس هم یادوے پښتو پښتون؟
ته په خوب وبوګنیدلے لیونے شوے
دَ مغلو نظر مانے سپیلنے شوے





ستاد قام او اولس جالے بہ سپیرے کرم
پہ پښتون باندِ بہ دِ کے ھدیرے کرم
زہ حیران یم چہ تہ څومرہ ځیگر ور یې
او پہ څہ لہ خپلہ ژوندہ مرور یې
پہ ورو باندِ دِ کړے دی دا بہے
دَ کمزورو دِ اخیستی دَ بیا پرے!
کہ دِ خیال پہ زړہ کښں پاتے پروے وی
یا پښتون رشتیا پہ جنگ کښں مړے وی
دَ زلمو دَ جنگ میدان تہ را بہر شہ
ښزوینہ! دے طوفان تہ برابر شہ
کہ دا نہ وی لو بیا واورہ دا پیغام
دَ مغل دَ ایلچی وکړہ احترام
را شہ تیت شہ دَ مغل پہ آستانہ
دا چتی فکرونہ پریږدہ مستانہ
دَ بادار پہ مخ کښں وَدریږہ نوکر شہ





لاس په نام د مغليانو په محضر شه
وسله کېږده اورنګ زيب ته په تعظيم شه
خپل تقدير مغل ته وسپاره تسليم شه
دا د ننګ ناموس نارې دي واړه پرېږده
دا در پښې ترا رې دي واړه پرېږده
پرې وتړه په غاړه را روان شه
په دې کړو ګناهونو دي پښيمان شه
راشه ښکلی کړه د مغل د خدمت زلګه    د اورنګ له پابوسي مه کوه کړکه
د مغلو خدمت واغونده سردار شه
خير او شر دي خپل وپېژنه هوښيار شه
ګونډې وهک په کرمه نوم د پښتانه
آرزو ګانې به دي کړم چه کفانه
يا به راشې اټک له به سر ټوسر    يا به ورشې زما د تيغ پر هر
زر ايلچي له جواب ورکړه د پيغام
نور دي خوښه چه هرڅه کړې والسلام





# دَ ایمل جواب

پہ نامہ دَ ھغہ خدائے چہ مهربان دے

ھغہ خدائے چہ پیدا کړے یئے جهان دے

پہ[1] سجدہ یئے مزکے سر دے نګوے

هم یئے ز ورېند پہ رکوع سرہ آسمان دے

ھغہ خدائے چہ یو مغل کړی بل پښتون

ھغہ خدائے چہ یو موسیٰؑ کړی بل قارون

ھغہ خدائے چہ یو پښتون کړی بل مغل

یو لخته څئنے خار کړی څئنے ګل

پس لہ حمدہ بیا درود پہ پیغمبرؐ

دَ انسان دَ تقدیرونو پہ رھبر

---

[1] رحمان بابا۔





دَ پښتون ایمل له لوری داکتاب
دَ مغل دَ یو سالار دَ سوال جواب
دَ مغلو صوبه داره اے امینه!
اے دَ عیش په کرسۍ ناسته نازنینه!
زه دَ سر دَ پاسه سر کله منمه
بے پښتونه بل افسر کله منمه
پېژندلے تا تر اوسه پښتون نه دے
تا لیدلے دَ ننَ ورځے پرون نه دے
دَ پښتون دَ تورے برېخ به دِ شمکور کړی
دَ مغلو دا افسر به دِ نسکور کړی
په میدان کښې دَ تیرو تورو غورزنګ
دا پښتون ژلمی کوی نه چه تارنګ
دا خټکل دَ مزرو ده شیرخانه
دَ تیز پرو شاهینانو اشیانه
په خنجر باندِ قلم کړه سر دوه نیمه





ورسره یم دَ دښمن ځیګر دوه نیمه
تاراوستی دی دَ هند یو څو کوهرځ ۱
دَ پښتون میدان جنګی لره لښکر
اے مغله! په وطن مُدام شهید یم
لکه ته شقی غلام نه یم سعید یم
یا به ومنی مغل زموږ خراج
یا به کوز کاندی له سره ځینی تاج
دَ پښتون زلمی دَ سرو ستر کوله ویرے
دَغلیم زړه له هیبتهٔ چوی هر چیرے
پښتونخوا کښ دَ پښتون ښخ دی هډونه
په نامه دَ پښتونخوا بائیلی سرونه
د لته ډیر تاجونه پر یوا ته نسکور
د لته ډیرے ویني توے شوے په هر لور

---

ع۱ پښتانه هندیانو ته کوهر وائی:





دلته ډیرے تورے پټے دَ دُښمن شوے
سرنیزے کړے ورنے په دے وطن شوے
دَ دښمن دَ زلمو جوړنه شولے کوږنه ے
پرِ بلا دَ وا قعاتو شولے پښنه ے
بیا به لاړ سلامت نشی که خدائے کاندی
تر دے ځائے به اوچت نشی که خدائے کاندی
موږ دَ جنګ سره بلد تلږه ځوانان یو
لا داړه په ښکار بلد شیر بچه کان یو
موږ ته جنګ په میراث پاتے له پلرونو
ښنوا وبو غوند ے جوړ دَ خنجرونو
اُس هم بے دی لمبے زموږ له اوره
غوغا جوړه په دُنیا زموږ له شوره
زه چه ستا ځمکښ سلام کوم تېښتېږ م
اے مغله زه پښتون یم شر میږم
اموخته په سلام نه یمه پښتون یم





زه تناکے دَ مغلو دَ لړ موں یم
دَ کوهر زیب او زینت زماله آ به
اضطراب دی دَ شرر زماله تا به
دَ پښتون پنجه منګل دَ زمری ده
استعداد دَ پښتنو بهادری ده،
اے مغله پښتو نخوا زمونږ ناموس دے
مونږ شرړے سکندر ځوے دَ فیلقوس دے
که یا بر شته دے هر کور کښے شیر شاهم شته
که تیاره شته په دُنیا نو رڼا هم شته
دَ بُوډی به په تال کښې زانګے هوسیږے
طفله! اوچوے سپوږمی نه لاس خندیږے
اے فرعونه! دَ موسیٰ څه ذکر بویه
دَ قلزم دَ کرداب نو فکر بویه
که امواج هر څو مره مست شی دَ طوفان
خو تړ ویره کړکه نکړی نهنګان





تاب شی پورته د نظر، زماله ویرے
جوهر توئے شی دَ خنجر زماله ویرے
شی توتے توتے ځیگر زماله ویرے
ناسوری شی هر پرهر زماله ویرے
کتبوری له زانو مه غواړه ماشومه
اے دَ روح دَ فضیلت ځنے محرومه
ورشه وسپړه ځیگر د همآیون
په ډیلی گوره لښکر دَ همآیون
وائي ځه دَ بل په خوے ستوغے سپیرے
راشه وگوره میدان دَ تهتر ے
دَ پښتون په سپک نظر با ندې به خوارشے
اے امینه په خوارۍ به گرفتا ر شے
ستاله تور ے اوله ډاله نه ویریږم
ستاله سازه له سنباله نه ویریږم
دَ مغل دَ سر خنجر یمه خبر شه!





ستا دَ پښو تورې سیږیه خبر شه
غنیمت دَ پښتنو په ملک کښې پریږده
ته یو سرا ودوه غوږ ونه څنې لیږده
کوندې زین به دِ په سرو وینو ګړ کړم
اے مغله! تول ښکر به دِ لغړ کړم
دَ جبې تارو! شهباز کره میلمه شوے
ګویا نور دَ ژوند ستړیا څنې دمه شوے
دَ پښتون په ناموس پښے مه ګده جسوره
اے دَ بل په غلامیو کښې مجبوره
تا جنت ځانله جوړ کړے دے په خیال کښې
مکر ونښتې دَ بدے ورځې جال کښې
دَ پښتون دَ تورې شرنګ به درخړ ګندشی
په ترخو به دِ بدل دَ خوږ و خوند شی
دَ زمری پنجو له راو ستې تقدیر
پس له دے درته فائده نکړی تدبیر





يا به دې پښتون حاکم په پښتونخوا کښ
يا به يو پښتون هم نه وې په دُنيا کښ

---

# دَ جنګ صحنه

(۱)

یونسیم وُ په نامه دَ اس نومړے
دَ پښتون ایمل سورلۍ لره زین کړے

څه شنواری، اپریدی ورځه مومند
چه دَ جنګ تړون یې وکړلو په خوند

ایمل پښه په رکاب کښښوده سور شو
په لښکر دَ پښتنو کښ پورته شور شو

ایمل خان غازی پښتون د بریالے وی
زمونږ مشر دِ همیش دا ننګیالے وی

ایمل لاس په شور ما شور کښ کړو وچت
پښتنو ورونو! غوږ کیږدی لږ ساعت!

ځلی وران مغل را وخاته په کور

مغل شو زموږ غیرت لره پیغور

پښتنو! څه نوم مو شو برباد

خوار او زار شولو د نوم پښتون اولاد

د مغلو نښکر راغی پښتو نخوا له

د دښمن پیش خیمې راغلې زموږ خواله

مغل زغرد راوختل زموږ په سیمه

د پښتون پښتنه وکړې له غلیمه

د پښتون ناموس پښتون له بیا راستون کړې

پښتونخوا کښې بیا پیدا باچا پښتون کړې

د خوانې زکوة بهرکانې زلمو!

د مغل ځیګر پرهر کانې زلمو

د مغل نه توره واخلی په میدان کښې

پښتونیمګړی نشی امتحان کښې

د پښتون د تیغ جوهر کړې ورځ کند





لاس او پښې دَ مغل بند کړي په کمند
دَ مغل په وینو تا و دَ تند ے سور کړی
په مغل دَحشر او نشر میدان جوړ کړی
اے زلمو! چه پښتنے سر تورے نکړی
دَ پښتون دَ یا د جنړ ے نسکورے نکړی
دا کوهر دَ هندوستانه دی راغلی
دَ مغلو له آستانه دی راغلی
تیغ په لاس ورځئ اخلئ سپرمه کوری
پت په ځائے دَ پښتانه کړی سرمه کوری
پیغور پرینږ دیه اولاد دَ پښتنو ته
کور بنو! وطن ورنکړی میلمنو ته
یا مغل وُشړیه واړه مردانه شئ!
یا په سر کړی تور پړونی زنانه شئ
دَ زخمی زمری پښتان را و پار یږ ی
په سیسو لکه بازونه وقار یږ ی





لکه موج هسې په سر واخلی خسنی
وریږي کړی دَ دښمن دَ آرزو زنی
په پکړی دَ پښتانه بابا گُل کیږدی،
بس، منګل په مال او سر دَ مغل کیږدی
لږ ساعت وی دَ لړی او دَ بری
په خیبر کښ توره وکړی حیدری
دَ خیبر په تره تره وینې توے کړی
نیت م تیر دے له مغله زړونه لوے کړی
دَ مغلو په لښکر شی برابر!
ځی بِسْمِ الله! او اللهُ اَکْبَرُ
یو طوفان وُ په خیبر باندِ راسم شو
دَ غازی ایمل پریشانه زړه راجم شو
کانی بوتی له هیبت ځنے خاموش
اباسین دَ پښتنوالی شو په جوش
هنګامه وه دَ عظمت دا پښتانه





مزکه واخسته دهشت د پښتنو نه

خیبر ولید دَ قوت او دَ لویه روح

مغل ولید دَ پښتون دَ سرداری روح

مزکې تال کړو دَ پښتون له هر قدمه

کائنات شول دَ قیامت په طمعه طمعه

پښتنو پیغلو داریال واهه دَ جنګ

دَ تورزن پښتون جذبې وې په غور زنګ

په لکونو دَ مغلو وُ لښکر!

او امین دَ دې لښکر وُلوي افسر

پنځې یې ورکړې مغل او پښتانه

یا نصیبه چه به څوک کاندی ستانه

دَ مغلو په زرو زرو پیلان!

په وسلو وو پرِ جړاؤ سواره سپایان

دَ اسونو رسالې قطار قطار

شوې راکډه دَ جنګریز په هی منتار





پښتنو زلمو پہ مټ کړے تېښنے توُرے
ډیرے میندے دَ مغلو شولے بوُرے

دریاخان ہم دَ بریښنا د ا ھسے بریښ
شین خنجریے دَ مغل پہ ځیګر پیښ

ویئے پټے لہ صورتہ تښتید لے
دَ جنګړیز لہ دھشتو نو بھید لے،

سر بہ سترے دجنګو نو پہ غزبل شو
د تنے نہ بہ خپہ شو نو بہ بیل شو،

ترزی اس بہ دَ تیغ اب ښکلو پہ مینہ
او سپاھی مغل پہ لپو خپلہ وینہ

سر بہ ھم شو نیم او سپر بہ ھم دوۂ نیمہ
دَ ځیګر سرہ بہ شو تہتر دوہ نیمہ

چاځان واچولو سیند تہ لہ ھیبتہ
څوک ګر ګنګ نہ راګرزار شول لہ دھشتہ

دَ مغلو دَ توپونو د سندو کار





په خیبر باندے آسمان شو دَغبار
دَ پښتون دَ تورے شرنګ دَ مغل مرګ وُ
اس او زین به یے پیٔلے سره عنبرک وُ
اخر شولو په جنګریز مغل پښیمانه
د پښتون د اوږ دے سانه شو ستومانه
دا لکونه لښکر وُمړ تهتره کښ
کلی وران مغل شو پیښی په خطره کښ
خاندان دَ میرجمله جمله تباه شو
دَ پښتون دَ مټ له زوره اُس آګاه شو
پښتانه په غنیمت باندے ماړه شول
په دښمن باندے یےُ بنه زړونه ساړه شول
امیلونه امیلونه دَ ګُلو نو
په ایمل باندے شیندل به پیغلو جونو
پیغلو سرے په دے اختر کړے منګلے
په سرو سترګو ژړیدلے به مغلے





په چمن د مغلو والے خزان راغے
د شیرشاه نه پس پښتون ایمل خان راغے

ننداره چیانو څه بچه پاسیږ وخوره
د ایمل بابا چا لا پاتے هنګامه ده

———





# ځان له اشنا ولوره نظر چه ته تیت نه شوے

شوکت الله خان اکبر

باد ونه لوغړن م ګلستان باندِ تیر شوی دی
کړسونه دَ هجران مِ شبستان باندِ تیر شوی دی

ډیرے ناګردشِ م دَ فلک دَ زړه دَ پاسه دی
او ښکے م رودونه په ګریبان باندِ تیر شوی دی

څه پوښتے لماچه وو غمونه په هجران کښې څه
کوم کوم به یے ستا یم چه په ځان باندِ تیر شوی دی

زړه پاره پاره م دَ هجران په ډیر غمونو دے
نیم پما یو، زے نیم جهان باندِ تیر شوی دی

هغه شان په لاردِ دَ منزل هم تمنا لری
ډیر که طوفانونه دے کاروان باندِ تیر شوی دی



غم سره آموخت شو مه خوخوی ام د شاهین د لا
زه هغه مثال چه مسلمان پاندِ تیر شو ی دی،
ځار لتا شم اے لوړه نظره چه ته ټیټ نه شوے
دیرکه قیامتونه ستا په ځان باندِ تیر شوی دی



# زمونږ نشان

(نامعلوم)

تل دِ جنګ زمونږ نشان وی
تل دِ وی پښتو زمونږه
تل دِ خور دَ ننه پشان وی
نام دَ پښتنو زمونږه
تل دِ مرنه هم په دے یم
داد تلم په زړه ښکل وی

---

"پښتون"
جولائی سنه ۱۹۴۷ء



# دخټکو مرزکے ته

عبدالله جان مغموم

اے دَ اغزو او دَ ګلونو مرزکے!
دَ کاڼو تیږو تورو غرونو مرزکے!

اے دَ همت دَ خزانے میر منے!
دَ شجاعت دَ سیلابونو مرزکے!

دَ پښتو مورے دَ پښتو ننه ډکے!
دَ خوشحالخان غونډِ زمرو نه ډکے!

ستا احترام کوَل پکار دی منم
تا ته سلام کوَل پکار دی منم

اے دَ چمن اے دَ ګهن خاوُرے
اے دَ خټکو دَ وطن خاوُرے





اے دَغیرت دَ افسانے میرنه
دَخوشحال خان دَمضبُوط تن خاورے

دَغیرت مورے دَغیرت نه دِ کے!
لے دَ خټکو دَعظمت نه دِ کے!

ستا احترام کوُل پکار دی منم
تا ته سلام کوُل پکار دی منم

ځکه چه تا دَخپل عزت دَ پاره
دَآزادۍ دَحفاظت دَ پاره

دَخوشحال خان غونډ ځامن راوړي
دا سے غازیان دلسے تورزن راوړي

چه اباسین کښ یې سیلاب راوستو
شاو و میرو کښ یې انقلاب راوستو

ستا احترام کوُل پکار دی منم
تا ته سلام کوُل پکار دی منم
دَغیرت مورے دَغیرت نه دِ کے!





اے دختکو دَ عظمت نه ډکے!

دَخوشحال خان آس پتا پښے ایښی دی

تا دَ شفقت نه په سینے ایښی دی

ختک زلمی تا باندِ سر ایښے دے

تا په خپل زړهٔ په خپل ځیګر ایښے دے

ستا احترام کوُل پکار دی منم

تا سلام کوُل پکار دی منم

دَ پښتو مورے دَ پښتو نه ډکے!

دَخوشحال خان غونډِ زمورونه ډکے!

ستا په خواری باندِ خواریږمه خو

که تپوس کوم ګنهګار نیږمه خو

دومره تپوس درنه کوم چه ولے؟

دا اوږے تږے او بربنډهٔ شوے ته؟

دومره پوښتنه درنه کوم پښتنے

بس دَخوشحال نه پسته شنډه شوے ته!





# ترانه

عبدالحکیم خان ستی

زه په ترغیب دَ خود غرضو نه تیروز مه
صبا به ځم په جنګ دَ قام زه کله جاروزمه

ما ته وطن دَ ځان بهتر دے
په وطن جنګ عین اختر دے
ځکه قربان مې ترې نه سر دے

په قربانۍ به دَ صیاد دَ دامه اوځمه
صبا به ځم په جنګ دَ قام زه کله جاروزمه

دَ صبر توره به په لاس کړم
زاغ به شرم باغ به ترې خلاص کړم
ځان به په امتحان کښې پاس کړم





بیا به دَ جنګ میدان ته زه بیا مارا وځمه
صبا به ځم په جنګ دَ قام زه کله جار وزمه

کله شم موم کله فولاد شم
کله دَ وینو په باڅلات شم
خاص دَ خالد رض بابا اولاد شم

دښمن ته زهر شم دَ قوم خوږے له دارو ځمه
صبا به ځم په جنګ دَ قام زه کله جار وزمه

آزادی نښتے دے په کور کښ
ترخو به ناست یمه په اور کښ
اوس دے بربند په باغ سمسور کښ

شم به آزاد که دَ عمل میدان ته اوځمه
صبا به ځم په جنګ دَ قام زه کله جار وزمه

سور به په تخت شاهانه شم
که زه پښان دَ مردانه شم
دَ یار په غم کښ دیوانه شم





یا مهاجر شم دَ مکے یا انصار او حُمه
صبا به حُم په جنګ دَ قام زه کله جار و زمه

باغ کښې دَ وینو او به خور کړه
ستی راحُه جهان خبر کړه
دَ بوستان هر بوټے ثمر کړه

که باغ تازه شی زه یےٗ هم په بهار او حُمه
صبا به حُم په جنګ دَ قام زه کله جار و زمه

---





# بَله ډیوه!

محمدالدین مقید دَتل (کوهاټ)

اے چه ورک یې په وطن کښ دَخپل تن ډیوه کړه بله
دَتږوند وږن تورے تیرے کښ دَدیدن ډیوه کړه بله

اے چه حق درځې ورکے دَے دَ وخت تور وتیرو کښ
دَ سرو وینو په روغن دِ دَ وطن ډیوه کړه بله

خپله جنګ خپله هتیارشه دَخپل ملک خپله معمارشه
دبل فن ته فن مه وایه دَخپل فن ډیوه کړه بله

اے سحره! ته ول شبنم شه وے بوټی تول تشنه دی
سره ګلونه پژمرده دی دَچمن ډیوه کړه بله

دَ پښتو ډیوه ډِ مړه ده ته اودهیږه اے پښتونَه!
سترګے پورته کړه بیدارشه دَزیستن ډیوه کړه بله





تر قیامت به دَ هغوی په مزار ډیوې بلیږی !
خپل شیرین وطن دَ پاره چه چا ن کړه ډیو بله
دَ غیرت لمبه پیدا کړه دَ خالدؓ ناموس تازه کړه
صرف نه مه کوه دَ تورے په روغن ډیوه کړه بله
صیاد یا تے حق حیران دے ستا له آه او له فریاده
مقیّد یا خاموش نه شے دَ سخن ډیوه کړه بله

---

# ناخبره پښتون

محمد نور خان بېتزائے قلعه عبدالله (بلوچستان)

په عالم کښ ناخبر دی پښتانه
خوار خسته خاورے په سر دی پښتانه

نور و خلقو کور و بر دواړه خوندی کړه
نه دَ کور او نه دَ بر دی پښتانه

ټول قومونه متفق شو په خپل میانکښ
لا تر اوسه ناخبر دی پښتانه

نور قومونه مکمل شو سر تر پایه
په دُنیا کښ کنډ کپر دی پښتانه

بنه قانون دَ بهادری یے تر شا کړے
په رواج ولاړ اکثر دی پښتانه





کہ یې اوکړو اتفاق خان یې محکم کړو

خاوندان دَ بحر وبر دي پښتانه

چہ تر تام او تر وطن قربان نہ شي

تربنګیانو هم بتر[۲] دي پښتانه

تول قومونہ دَ عروج پہ زینو خیژي

مګر ډیر زیر و زبر دي پښتانه

[۲] بدتر





# عمل

میر مهدی شاه مهدیؔ

زه فرزند دَ یو عمل یم ۔۔۔ دَ تقویٰ زهد مشعل یم
زمانه زه خندوومه ۔۔۔ یم فعّال دَ فعال مل یم
دَ سیالۍ دوُرزو خیال یم ۔۔۔ دَ پښتو حال او محل یم
شنه وریځ کښې رعد نه یم پۀ تش قال نۀ خوشحالیږم
دَ عمل پۀ سمندونو ۔۔۔ دَ ویناپۀ دریابونو
پۀ ترلو دَ وختونو ۔۔۔ بس دَ مینې پۀ موجونو
دَ سیالۍ نۀ چۀ اوچت وي ۔۔۔ پاس دَ عرش پۀ کمندونو
د اسې حال مهارت غواړم پۀ بل حال نۀ خوشحالیږم
ما پرې یوخدمت دے ۔۔۔ دَ پښتون دے نۀ حاجت دے
پۀ رفتار دَ زمانې کښې ۔۔۔ دَ پښتو پښتون وقعت دے





د هر یو پښتون په در کښې ... م سائل دَ او صیت دے
په دے خوشو سالګروزه کال په کال نه خوشحالیږم

خپل زړه واخله دا دَبل کړه ... دَبل زړه پرِ باندې خپل کړه
دَ بقا په شمعه وریت شه ... ځان دَ خدائے دَباغ بلبل کړه
بالغ جوړ دَ خپل شناخت کړه ... معشوقه پرِ دَ ځان مل کړه
په ماحول دَ تغافل کښې تا پائمال نه خوشحالیږم

حال و قال په تن لباس کړه ... خپل ځان تن او قوم دِ لاس کړه
تقاضو دَ زمانے نه ... دَ عمل تیره الماس کړه
د اسلام غرض غرض کړه ... بیا یر غل په غل خناس کړه
دَ مهدي په انتظار کښې تل ملال نه خوشحالیږم

---





# خیبرته!

ساغر افریدے

په دے تورو هسکوغرونوکښ خیبرهٔ!
ستا دَ نوم په دے حرفونوکښ خیبرهٔ!
ستا دَ لار په کږ پیچونوکښ خیبرهٔ!
ستا په خاورو او کردونوکښ خیبرهٔ!

دَ قومونو تقدیرونه پریشان دی
دَ تاریخ حلند بابونه گواهان دی

په دے څه که درکښ نشته دے گلونه
یادَ ویرے درکښ تلے نه شی سیندونه
بیګانه که له بهار وی ستا باغونه
بیا هم دَ ومره دی ښائیسته ستا منظرونه





چه ګُلونه دَ سپرلی پرِتول قربان شه
هر ښایسته سپرلے نثار ستا په خزان شه

ځکه پاک یئے چه دَ پاک وطن حصه یئے!
دَ آزاد قوم دَ تقدیر ښکلے جوسه یئے!
دَ پښتون دَ ماضی صافه آئینه یئے!
یئے مری دَ ټول وطن هغه دره یئے!

ته سبب دَ غزنوی دَ لوی حشمت یئے
څه که پټ نن په پرده کښ دَ ظلمت یئے

دَ غیرت چینے په تا کښ راختکیږی
دَ وطن هر تږے ګټ پرِ سیرا بیږی
ستاله نومه دَ باطل زړبی غورزیږی
په سینه دِ چه غیور افغان اوسیږی

ته خیبره دَ پښتون یئے پښتونستان دے
دَ غیور قوم دَ څوانانو زړوند وستاد دے

که ته نه وے بے تهذیبه هندوستان وُ





په تیارو کښې به پټ نوم جنت نشان و

نوم به چرته د میرویس او د افغان و

د پښتون قوم د ژوندون چه لوی ارمان و

پیژندل به چا محمود غوری، بابر نن،

نه به وے د توحید مے او نه ساغر نن،





# پښتون بچے

عبدالقیوم کوثر

زه پښتون بیا شوم را بیدار ور پسے،
دَ ارتقاء دَ زمانو سره ځم

دومره په تیزه م خیالات دی روان
چه دَ افتاب دَ پلوشو سره ځم

دا چه هر چاے ترغفلت کړو کریز
والیٔ به اُس دَ پښتنو سره ځم

مؤرخان به هم حیران شی را ته
اُس دَ هر قام دَ مخکینو سره ځم

که میړنے نه یم نو هم به شمه
تل به په لار دَ میړنو سره ځم

چه کړی کوثر بیدار دَ ځانه سره
ځم خو دَ دار ټے ځلمو سره ځم



# قام خوشحال خان بر بندوال دی

میاں احمد شاہ بیرسٹر

څوک غماز ته چه پخپل سر دلالی کړی
دَ عزت به جولی آخر خالی کړی

څه به طمع دَ وفا دَ هغه کس کړے
چه په کور یې وی ماتم او دے بنادی کړی

په بازار دَ قامولی دَ قام سودا کړی
دے به ګله په بل چاباندے خالی کړی

سره یې لاس په وینو سور نکریزے بولی
کورے څرنګه نامراده خوشحالی کړی

دَ مار غنه په ځیر حرص دَ پینو پرے شی
زونے دَ غلامی بنایسته کالی کړی





چه د سرو زرو مرغۍ له لاسه پرېږدي
تل به ناسته د پردو په تش تالي کړي

سره ګلونه د خپل باغ تالا والا کړي
خدائے به يے ګله د بل چا د باغ مالي کړي

د وطن د پاره ننګ شي په دُنيا کښې
شرمنده په بد عمل خپل ځواني کړي

د خپل رور په سلام ځان ورته شرميږي
د پردو په مخکښې شپه او ورځ زاري کړي

پخپل قام شي شنډه وُنه جل وهلې
د اغيارو ځائے کور واړه خالي کړي

شاکه سيلي ده د خزان په ملک رالوَيې
لاس کړه پورته که خدائے زريے آسماني کړي

---





# زیرے

سلیم

زما خوارانو مزدورانو رونړو!

اے محکومانو مظلومانو رونړو!

زیرے بچه مونږه اتحاد اوکړو

پخپل تنظیم مو اعتماد اوکړو

مونږه منزل ته ډیر قریب راغلو

مونږه رفتار لکه دَ باد اوکړو

اُس به که خیر وی خپل جهان جوړکړو

مونږه تقدیر به دَ انسان جوړکړو

ستوری به مزکے ته پسخیږی زمونږ

مونږ به دے مزکے نه آسمان جوړکړو





دا سے جهان چه خوشحالی وی پکښ
هر یو موسم دَ سُکالی وی پکښ
دَ هرچا شونډو ته خندا وُرسی
او دَ یو بل سره سیالی وی پکښ
دَ لوږو تندو شکایت به نه وی
دَ چل فریب ډک سیاست به نه وی
هلته ضمیر به دَ چا نه خرخیږی
دَ دے خبرو څه حاجت به نه وی
هلته به قدر دَ انسان کیږی
دَ هر یو درد به یۓ درمان کیږی
هلته به پښو کښ پیکرے خونه وی
هلته دِ کرځیٔ څوکیٔ توان کیږی
دلته خو فصل زمونږ نور یوسی
دانه دانه را نه په زور یوسی
ماشومان تول را ته نهر پریږدی





منځ نه روتې زمونږ دَشکوریوسی

زمونږ دَ شونډو تبسّم لوټ کړې
زمونږ آواز نه ترنّم لوټ کړې

په قوا نینو زمونږ خولې اوتړې
مونږ نه طاقت دَ تکلّم لوټ کړې

ولې ترڅو، آخر تر څو به وی دا؟

دَصبر جام زمونږ به لوے شولېس
دَ انقلاب بچے به لوے شولېس

اُس دَ دُنیا څه ضرورت نه کنم
زما یقین دے خلق پوے شولېس

زما خوارانو مزدورانو رونو! اے محکومانو، مظلومانو رونو

اُس به که خیر وی خپل جهان جوړکړو
مونږ به تقدیر به دَ انسان جوړکړو

ستورې به مونږ کے ته پسځیږی زمونږ
مونږ به دې مځکے نه آسمان جوړکړو





# راځئ هم زولو شاه زلمو!

کرامت شاه فولاد

په وطن ننګ دے ملا تړلې جنګ له ځو نه
راځئ هم زولو شاه زلمو

دَ مینے یو تربل به واچوؤ لاس و نه
راځئ هم زولو شاه زلمو

اے دَ پښتون وینے پیدا پښتنو!
اے په غیرت باندے شیدا پښتنو!
دَ پښتون خاورے نه فدا پښتنو!

پښتونستان به پښتنوله جوړه وُ سَنه
راځئ هم زولو شاه زلمو

دَ ننګ په وخت کښې خوب آرام دے حرام





پښتون له سپکه ژوند دَ ناکام دے حرام
دَ مریتوب بل ته سلام دے حرام
که بل ته سر ټیټ کړو پیوېږدی لعنتونه
راځئ همزولو شاه زلمو

نن دَ غیرت او دَ عمل وخت دے
دَ عزت جنګ لره دَ زغل وخت دے
دَ تاج و تخت یا دَ اجل وخت دے
ځکښ ولاړ دی راته تک سره نښانونه
راځئ همزولو شاه زلمو

زمونږه توره دَ اقبال توره ده
تل په ذلت باندے پرِ مور بوره ده
پښتونخ دَ دے تورے پرته خوره ده
دَ پښتون تورے نه لړزیږی همیش غرونه
راځئ همزولو شاه زلمو

کیږه زمونږ به خوری بل وے



غوځ زمونږ دِ شی څو کل و ے
پردی نه پریږدو وطن و ے
کتلی ملک باندے پخپله کړو عیشونه
راځئ همزولو شاه زلمو

منصب زمونږ دے حکومت کوؤ نه
په خوږ وطن باندے غیرت کوؤ نه
دا دَ وطن اصلی خدمت کوؤ نه
دَ پښتنو په لمن نه پریږدو داغونه
راځئ همزولو شاه زلمو

په پښتنه خاوره قسم دے زمونږ
وینے دَ خوږ وطن رقم دے زمونږ
دَ پښتونخوا تور زن عالم دے زمونږ
هیچا ته نه پریږدو دَ ملک کانی لعلونه
راځئ همزولو شاه زلمو

آخری ننګ په مونږ دَ قام پور دے





په پښتنو دَ ستم بل اور دے،
خپل وطن ځئ له موږ نه حال بوړ دے
بيا تالاکيږی دَ پښتون دَ باغ ګلونه
راځئ همزولو شاه زلمو

زموږ وطن کښې دَ چا کار څه دے
زموږ عزت سره بيو پار څه دے
جوړ پښتنو با ندے ناتار څه دے
پښتونستان نه بغير ژوند دے زحمونه
راځئ همزولو شاه زلمو

ګټلے موږ ده آزادی په وينو
ګولۍ خوړلی دی هم موږ په سينو
دِک يو دَ قام دَ ننګ و نام په مينو
فخر افغان نه به خپل ځان قربانونه
راځئ همزولو شاه زلمو

پښتونستان دَ پښتنو وطن





په ننګ غیرت دَ لیونو وطن
دَ ننګیالانو میړنو وطن
زمونږ دِ داوُشی پرِ د اخپل خوابره سرونه
راځئ همزلوشاه زلمو
دا دَ وطن خاوُره مونږ ګرانه کړو
غوره له تول واړه جهان نه کړو
تول پښتو نخوا تر ینه قُربانه کړو
نه پریږدو مونږ پرِ دَ غدارو قدمونه
راځئ همزولوشاه زلمو
زلمی دَ قام نه قُربانی کړی مزه
قُربانی خپل مال او ځوانی کړی مزه
په پښتون خاوُره لاثانی کړی مزه
ناسته په کورکښ خوندکوی همیش له جونه
راځئ همزولوشاه زلمو
راځه ولاړ فخرِ افغان دِ زمونږ





او واڼئ دابل امتحان دے زموږ

په موږ کړان پښتونستان دے زموږ

پوره کړو ورسره خپل قومي اوطونه

راځئ همزولو شاه زلمو

که موږ چرته پښتونستان که يوځل

نوم مُ روښانه دَ افغان که يوځل

له غم نه خلاص فخرِ افغان که يوځل

دَ اسمان ستوری به زموږ کوی سيلونه

راځئ همزولو شاه زلمو

راځئ چه دلے دلے يو شو سره

فولاده راشه دَ زړګی مے سره

ننګ دے په قام بانډِ پکار په سره

قومونه تل کړی دَ وطن په ننګ جنګونه

راځئ همزولو شاه زلمو

---





# زمونږ کرانے پښتو ژبے

محمد رسول فریادی

پہ مایۓ کرانے دَ پښتو ژبے
زمونږ دَ ټولو پښتنو ژبے
کرانے زمونږ دَ پښتونخوا ژبے
دَ میرویس خان اودَ شیرشاہ ژبے
پښتون مجنون تہ یۓ لیلیٰ ژبے
دَ پښتون قام دَ وینیدو ژبے
تہ دَحمید اودَ رحمان ژبہ یۓ
دَ ایمل خان اوخوشحالخان ژبے
دَ احمدشاہ غوندے افغان ژبہ یۓ
دَ ننګیالیو پښتنو ژبے





پښتونولی مُ دَ پښتو سره دهٔ
ډیره مُ مینه دَ پښتو سره دهٔ
موږ دِ دعوه دَ محبت کړیدهٔ
دغه شروع مُ په همت کړیدهٔ
تېنګه وعده مُ دَ خدمت کړیدهٔ
ته یې زموږ دَ تېنګولو ژبې
چه موږ ژوندی یو په دُنیا به ته یې
ښه به دِ بولو په دُنیا به ته یې
والی اغیار چه دَ دوزخ ژبه یې
والی دروغ دَ فرښتو ژبې
دَ زمانو څخه راغلې یې ته
زمانې ښکته غورزولې یې ته
موږ پښتانه یو موږ منلې یې ته
پورته کوؤ دِ په جرګو ژبې
دَ پښتو څوا دَ بهادرانو ژبې



دَ ادیبانو شاعرانو ژبے

لویو، وړو او دَ زلمیانو ژبے

پښتون به ویښ کړے دَ پښتو ژبے

دَ پښتو شعر فریادی جوړه وی

اُس دَ پښتو به آزادی جوړه وی

---

ما ښکاره لیدلے خوب دے

وایه دَ دنیا شعوره وا را نه بیګانګی ګرزی

دَ پښتون دَ دنیا جوړیږی

امیر حمزه





# آخر!

سلطان محمد صابر (بلوچستان)

تیرے به شی دا ورځے رابشی بهار آخر
بشکل به کړی زاړه یاران یودَ بل رخسار آخر
سره او زرغونه به شی غرونه دَ هیوادِ زمونږ
خیز به دَ مرغانو وی بیاپه لوے چنار آخر
خاندی به هرځایے غوټی سره به کړی شونډان کوکی
او به کړی بلبل دے بیا شیرین گفتار آخر!
شپه چه غلے غلے ځی سترگے دَ صباوینی
توے به کړی شبنم دے اوښکے دَ بیمار آخر
والی به سندرے بیا ښکلے پښتنے جینۍ!
ستائی به وطنه ستا هریو فدا کار آخر





ستا په دَ نګو غرونو به شاه زلمي ځاروونه کړي
را بشي سيند ونو ته پيغلې په شرنګا آخر

چمن کښې به غماز نه وي بيره به دَ باز نه وي
پټ به دَ چار راز نه وي تت به شي افکار آخر

ټيټ به کړي صابره خود' دلته عظمتونه سر
درس به دَ غيرت لولي دلته کښې اغيار آخر

---





# خپله ژبه

اختر محمد ثاني بارکزی (بلوچستان)

خوږه خومره پسته ده خپله ژبه مورنۍ
هرڅه وته ښائسته ده خپله ژبه مورنۍ

هر قام په خپله ژبه کړی خوبونه خبرې
هرچا وته میراث ده خپله ژبه مورنۍ

تعلیم په خپله ژبه په آسانه حاصلیږی
هرچا وته راسته ده خپله ژبه مورنۍ

هر قام د خپلې ژبې عزت کاندی په رنګ رنګ
له مونږه ده بې غوره خپله ژبه مورنۍ

راځئ! په پښتنو به چه سره کاندو اتفاق
دُنیا وته ښکاره کړو خپله ژبه مورنۍ





زما اختر محمد ثاني مودونه د اکوشش دے
او چته په عزت چه کړمه تر به مورنی

---

# نصر



ډیر خوشحاله شوم چه اوم لیدے تا ته
چه لا قوم کښې زمونږ خلق شته ستا د ذات

د مجلس بنایست یے نصرہ! چه ته ناسته یے
بیا مجلس کښې څه وی؟ ته چه ترینه پاسے

★ ــــــ صاحبزاده فضل احمد غرؔ





# دَخیام درُباعیاتو ترجمه

صنوبر حسین مومند

دَساقي په مینه مست او خراب خوښ یم
په نغمه په ترانه دَ رباب خوښ یم
چه په خوله یې لَااِلٰه په زړه بلا وي
له دې [illegible] دي نه په خواب خوښ یم

---

اے خیامه! دَ [illegible] ماتم څه دے؟
غم خور لو کښې [illegible] سود زیات و کم څه دے؟
په قسمت دَ [illegible] غفران نشته
چه ګناه له [illegible] دے نو غم څه دے؟

---





اے آسمانه! خوی خصلت دِ دے کینه

زور زیاتے خوستا عادت دے دیرینه

مزے! ستا لر مون که شوک او لتوینه

دَ بعلونو امانت دے ستا سینه

---

کومه ورځے چه آسمان او چوی پړ ق پړ قه

رڼا لاړه شی دَ ستورو په یو پړق

عرصات کښ زما لاس ستا به گریوان وی

چه دِ قتل کړم صنمه! په کوم حق؟

---

# بې عَمَل ته

ارباب محمد اسلم خان شَرَر (مرحوم)

زړه خو زخمي بنه دے چه ترے وينے زوے څاڅي
مست هاتي خولې شي ورله مرا دمه ورکوه
څه له دَ دُنيا په بې همتو پورے خاندے
ته پخپله نر شه چاله باد مه ورکوه
دا دُنيا اُس بله ده، ته بله دُنيا ستا يئې!
يار ته خو ترغيب ته دَ فساد مه ورکوه
هسے که دِ خو بنه وی لوڅه چوکی راهب شه
خوشې مُصلےٰ له دلته باد مه ورکوه
تُوره تيره بنه ده خو چه تُوره دَ فولاد وی
او سينه که بنه شي پرے فولاد مه ورکوه
څله دَ شَرَرؔ په زخمي زړه پورے خندا کړے
څه غمازه دے زخم له دادمه را کوه!

# دُعا

عصمت الله خان دانش

دَ ماښام نرې تیره دې پسولګیږې
چار چاپېره خاموشي د لا چنه خورېږې

دَ آسمان په فرش سپوږمۍ د ځه خرام کوي
ستورې یو په یو را ځیږي او رپیږي

کله ځه کړې را ځرګند لکه چه "نا" کړې
کله پټ شي په وریځو کښې شرمیږې

یو وقار دے هر طرف په تورو غرونو
یخه یخه او نرۍ وږمه چلیږي

یو سکون دے یو فرحت دے چه پرېښودے
په دربار یا ندِ الوار دی را وریږي





خلق یو په یو ترِ لاړه سکون زیات شو
سوی زړه ودو لړه نور هم جنون زیات شو

دے فضا کښې یو آواز شو ناګهانه
یو غمژنه شان جینۍ وه رار وانه

په ادا کښې دَ فطرت یو نمونه وه
وه په حُسن کښې ښتیا ماهِ تابانه

دَ مخ خال و ته یې ستورې په دیدن وُو
سپین جبین وته یې زهره هم وه حیرانه

دَ بهار یو ترانه ناغوزېده لے
یو نغمه وه خطا شوے له اسمانه

نیمه نیمې غوریده نشوونه ده کے
ښکلے سترګے دَ حوّانی وے ترجمانه

رو رو راغله په ادب دَ روضے خوا له

په ادا یې لاس اوچت کړلو دُعا له





په ښو ښو کښې يې اوښکې رپيدلې
په سپين مخ يې ملغرې ځليدلې
زړه بند وه غږ يې نه کړو خو گويا وه
سل خبرې يې له خولې قربانيدلې
سرۀ گلاب هسې عارض يې په رنگ زيړوه
له جذباتو نرۍ شونډې رپيدلې
دُعا خلاصه شوه لاسونه يې په مخ راښکل
دې دُعا نه دُعا گانې ځاريدلې
اجابت چه يې استقبال لره رانه شي
دَلوې خدائې په درې خدائي کښې شي کيدلې؟
په عفت کښې فرښتې ترِ نه ځاريږي
کوم دربار کښې دا دُعا به نه قبليږي؟

---





# لوظ

همیش خلیل

که یو وخت دَ خطرے دربانډے راشی
دا زما وینے تو دے به دِ بکار شی
ستا په مینه کښې سندرے به زه وایم
هغه سر به زما سر وی چه په دار شی
هغه زه به په وطن کښې رومبے کس یم
په نامه دَ آزادی چه لتا ځار شی
هغه تُورکه به زما لاس کښې پرقیږی
چه سر ونوله دَ غیرو ذوالفقار شی
سره داغونه دَ سرو وینو به زما وی
پس لما چه ټول وطن به پرے ګُلزار شی





په اُفق به د راپورته لکه نمر شم
که تيرے دَ زمانے درباندے بارشی

ستا دَ مينے به لاس وانخله وطنه!
که مې ژوند په تناره دَ سُور انګار شی

د رحمان له پاک مزاره به يې لوګی کړم!
که په سترګو دَ وطن کښې مې خوک خار شی

معرکه دَ آزادۍ کښې سره وينے
لکه ګُل هسے زينت ستا دَ دستار شی

دے نه لويه بدبختی به نوره څه وی
چه کاروان يې مينځ لار کښې را ايسار شی

---





# خپله ژبه

اشرف درانے

موږنی ژبے! ستا عظمت به کړمه
تاله وطن! تاله عزت به کړمه

ته دَمیرویس او دَ شیرخان ژبه یې
دَابدالی غوندے افغان ژبه یې
ته ننګیالو او توریالو ستا شيے
دَخوشحال خان او دَ رحمان ژبه یې

ته خوږے ژبه دَ دنیا دَ پاره
دَ انسانانو دَ بقا دَ پاره

پښتو، پښتون ته دِ پښتو او ښائیه
پیرکوټ ته چل دَ الوتو او ښائیه





خپلو پخوتہ دِ پنجرہ کښې پښتو!
زاړہ درسونہ دَ سیالو اُو بنایہ

څکہ چہ وخت دَ الوتو دے زمونږ
باغ پہ گلونو ہتوکید و دے زمونږ

پښتو! دِ تا سرہ بہ پت کومہ
پښتون یم، تا سرہ الفت کومہ

دَخپلہ مال و سرہ تیر در پسے
زہ چہ تکل ستا دَ وحدت کومہ

اُس بہ دِ نوم اوھم نشان پورتہ کړم
پریوتے قوم بہ دَ افغان پورتہ کړم

---



چہ پښتون یکښې غلام وی
ورک دِ دغہ نړول جہان شی!
یا بہ سر یدے پښتون دو کړی
یا بہ جوړ پښتونستان شی

(رشتہ مرحوم)



دوغ بیوسے

ساتندویه دَجهان ؤم چه راتلمه

زه دَیار دَ روح پاسبان ؤم چه راتلمه

عاشقي م دَ ازله ده راوړے

زه پخپله یو درمان ؤم چه راتلمه

قید وبند کښ دَ سحرمابنام ایسارشوم

بے زمان او بے مکان ؤم چه راتلمه

بحروبر م جستجو نه راپیدا کړه

له جنته حق حیران ؤم چه راتلمه

بے ګناه ؤمه شیطان م ګنهګار کړی

دَ سجدو لائق انسان ؤم چه راتلمه

اُس زما دَ زړه ارمان بے پوره نشو

مخکښ ستا دَ روح ارمان ؤم چه راتلمه

# قطعات

رشید علی دهقان



ستا له دے تاجه زما پکول بنه
ستا له دے تخته زما کچکول بنه
جام دَجمشید هم ترے صدقه شه
خدیګوله دے نه زما کندول بنه



له سره تیر شه که ته حبل حُات غواړے
له حُانه تیر شه که ته جهان غواړے
دَهوش او عقل برید ونه مات کړه
له هرخه تیر شه که لا مکان غواړے

***

زه مئین په آزادۍ یمه پښتون یم
آزادي زما لیلیٰ زه یې مجنون یم
که زما په آزادۍ دِ نیت خراب کړو
نو غلیمه ستا دَ پاره به شبخون یم

***

بنه خودي بیدار ضمیر په وجود غریم
په قاموس کښ اوچت لکه دَ نمر یم
تندر ونه دَ آسمان دي ما زغملي
اے غلیمه دَ خیبر دَ زړګي سر یم

دا سودا به هر مغز کښي
که خداے کاندي ګرانه بیرته
چه پښتون سره یو کېږي
په تیرو ونو به کیږي
(مترجم)





# دوطن زلمیٔ ته

رضا مهمندی

دَ بالښت نه سرا وچت که، دَ سادین په تیګه سر که
دَ ځانګوجو ته که هیرے، زغم پیدا اُس دَ پرهر که
لګه مست هاتی په مینه دَ وطن کښې وهه منډے
سرِخیل په تلی کیږده، مخالف دَ چج وزر که
وطن ستا ستر ګو ته ګوری، زمانے ورته زلے کړے
خزانے لری دا مزکه، په محنت یے را ببهر که
ځان وا قف که له خزانه، ورک سپړلے دَ نامردی شه
اول خاوَر وکښی لتړ شه، هله پسته تاج په سر که
ته شاهین یے تش دَ مزکے، سکونت له تا نه بنا ئی
دا آسمان هم ستا جهان دے، پا سه والوزه ځان نر که
دَملت دَ تندے کوټ شه، خپله تنده دِ کړه هیره
چه دَ اوښکو په باران دِ دَ لحد خاوَرے تر که
ځان ته مه ګوره زلمیه دَحیات اجل ممات دے
که ته بن کړے ځان ستومانه، نو په ډیروبه اختر که